# کابل ښار

## د پیړیو په اوږدو کې




لیکوال :پوهاند غلام جیلاني عارض

ژباړن: دسر څېړونکی مرستیال نصرالله ناصر

# کابل ښار

## د پېړيو په اوږدو کې








ليكوال: پوهاند غلام جيلاني عارض

ژباړونکی: د سرخیړونکی مرستیال نصر الله ناصر



۱۳۸۱ لمريز کال - ۲۰۰۲ میلادي کال

# کتاب پیژندنه


د کتاب نوم : کابل ښار د پېړیو په اوږدو کې

لیکوال : پوهاند غلام جیلانی عارض

ژباړن : د سرخېړونکی مرستیال نصر الله ناصر

د ښېښتی عکاسی : محمد رفیع فاروق

خپرونکی : د اریک د گرځنده کتابتونونو اداره

پرله پسې نومره : ۹٤

لومړی چاپ : ۱۳۸۱ هـ.ش کال، د خپرونکي له خوا، پېښور

چاپ شمېر : ۵۰۰ ټوکه

د مخونو شمیر : ۱٤۰

کچه : ۱۳,۵ × ۲۱ سانتی متره



د خپرونکي پته : دویم کور، رحمان بابا روډ،

پوسټ بکس: ۱۰۸٤، یونیورسټي ټاون - پېښور

ټیلفون: ۸۵۰۸۳۹ - ۵۷۰٤۳۹۲

۵۷۰۲۹٦۲ - ۵۷۰۲۵۳۱

۸٤۱۲۹٦

فکس: ۰۹۱-۸٤۰٤۷۱

الکترونیکي پوسټ: aric@brain.net.pk



کمپوز او چاپ : احمد پرنټنګ پرېس، ټیلیفون ۲۱۵۵٤۰

دویش او پلورني ځای: داکبر دفتر (دافغانانو له پاره د مرستو دانسجام اداره)

بسم الله الرحمن الرحیم

د اکبر د اطلاعاتي او نشراتي منابعو مرکز (اریک) له پنځوو کالو راهیسې د افغانستان ولایتونو ته د گرځنده کتابتونونو پروگرام تر لاس لاندې نیولی دی. گرځنده کتابتونونه چې د فلزي صندوقونو په بڼه جوړ شوي دي، په یو خاص ځای کې ایښودل کیږي. د سیمې خلک ورڅخه امانت کتابونه وړي، لولي یې او خپلو شاوخوا خلکو ته یې هم اوروي. کله چې په سیمه کې د کتابتون ټول کتابونه ولوستل شول، کتابتون بلې سیمې ته لیږدول کیږي او یا پرې یوشمیر نور نوي کتابونه ورزیات او هماغه ځای کې پاتې کیږي.

مونږ دا هڅه کړې ده چې د گرځنده کتابتونونو له پاره داسې کتابونه راټول کړو چې د لیکنې ژبه یې ساده او د خلکو د اړتیاوړ مطالب ولري، تر څو چې په ورځني ژوند کې له هغوی سره په دیني، ټولنیزو، اقتصادي، ښوونیزو، روزنیزو، روغتیایي، تاریخي، فني، مسلکي او... مسایلو کې مرسته وکړي.

موږ د گرځنده کتابتونو تر څنگ دا سروې هم ترسره کوو چې خلک څه ډول آثارو او موادو ته اړتیا لري او د کومو موضوعاتو او مطالبو د مطالعې هیله من دي. موږ لومړی هڅه کوو چې غوښتل شوي کتابونه له بیلا بیلو منابعو (کتاب پلورنځیو او خپرونیزو مرکزونو) څخه برابر او راونیسو. په نومړو مراجعو کې د مطالبو او موادو د نشتوالي په صورت کې اریک هڅه کوي چې دا اړتیاوړ آثارو په تألیف، ترجمه او چاپ سره دغه تشه ډکه کړي.

د دغه موخې او هدف د تحقق او په عمل کې پلي کولو په منظور څلور کاله

د مخه د لوستونکو د علاقې وړ کتابونو د چاپ او خپراوي کار پیل شو او له هغه وخت راهیسې تر اوسه پورې د اریک گرځنده کتابتونونو ادارې د محترمو همکارو مؤسسو په مرسته په دغه برخه کې پیاوړي گامونه اخیستي او گټور فعالیتونه یې ترسره کړي دي.

د ښه او سیستماتیک کار له پاره د اریک د ادارې استازیو او یو شمیر څیړونکو او لیکوالو یو گډ هیأت وټاکل شو چې د مطلوبو کتابونو د پلان کولو، آماده کولو او چاپ کولو پړاوونه چې د تکړه او مسلکي لیکوالو له خوا تألیف کیږي، په گډه پر مخ بوځي.

دغه هیأت د افغانانو د صمیمي همکارې میرمن نانسي هـڅ دوپري، سیدمحی الدین هاشمي، خواجه غلام جیلاني شبل، فیض محمد نایاب عطایی محمد شکیب افضلي او محمد رفیع فاروق څخه تشکیل شوی دی.

مونږ له خپلو ټولو درنولو ستونکو څخه چې د هیواد په بیلا بیلو ښارونو او کلیوالو سیمو کې زمونږ له کتابتونونو څخه گټه اخلي، هیله لرو چې خپلې اړتیاوې، غوښتنې او پوښتنې راولیږي او د هیواد له لیکوالو او پوهانو څخه غواړو چې چه له مونږ سره په دې لاره کې مرستندوی شي، چې وکړای شو خپلو خلکو ته لا ښه او گټور کتابونه وړاندې کړو.

په درنښت

د اریک د گرځنده کتابتونونو اداره

# فهرست

# سریزه

کابل، دغه تاریخي، سیاسي، ستراتېژیکي ښکلی ښار او د افغانستان پلازمېنه، د هیواد د ټولو اقتصادي او ټولنېزو فعالیتونو د ودې او بشپړتیا ځانګو ګڼل کېږي. کابل د زمانې په بیلا بیلو پړاوونو کې د ډول ډول تاریخي پېښو شاهد دی. د کابل شاهانو له لومړني مدنیت څخه بیا تر نن ورځې یې زیات شمیر پاچاهان د قدرت پرګدۍ کښېنولي، ډېر متحارب او متعرض تیري کوونکي یې د دې سپېڅلې خاورې په ګوټ ګوټ کې تر سخت فشار لاندې نیولي او له منځه یې وړي دي. کابل د بلخ او غزنی د مدنیت له سقوط او ړنګېدو وروسته د پوهانو، عالمانو او د تاریخ د نومیالیو د روزنې لومړنی او پیژندل شوې ځانګوده. د هغه د پوهنې رڼا او ځلاهرې خواته خپره او د معرفت محراق دی چې د غې رڼا خپلې وړانګې له همدې ښاره د افغانستان نورو ښارونو ته خپرې کړي دي. د لومړنیو ښوونو له پیل څخه بیا د پوهنتونونو او لوړوزده کړو تر پرمختګ پورې، کابل د زده کوونکو او څېړونکو او استادانو د لارې مشال دی. کابل د شمال، جنوب، ختیځ او لویدیځ د لویو لارو د پیوستون او یو ځای کیدنې سیمه ګڼل کېږي چې د دغو فرهنګونو په یوځای کیدو کې د ختیځې او لویدیځې نړۍ تمدنونو مهم رول درلودلی دی. د وریښمو د لارې کاروان، د اورګاډي لومړنۍ کرښه او لومړنی موټر له همدې ښار څخه د افغانستان نورو ښارونو ته خوځیدلي دي. کابل فعالې ترانسپورتي لارې او هوایي ډګرونه لري چې مثبتې اغیزې یې په ټولنیزو او اقتصادی فعالیتونو کې د نورو ښارونو مرستندویې ګڼل کېږي. کابل د زمانې په اوږدو او بیلا بیلو

عصرونو او پیړیو کې د خپل لرغونی تاریخ ژوندی شاهد دی چې د شیر دروازې او آسمایی غره پرسر د هغه مارپیچ او کوږوږ د یوال د هغه د لرغونی اوروښانه لرلید ښکار ندوی دی.

«حصار مارپیچش اژدهای گنج راماند»

«که میارزد به گنج شایگان هرخشت د یوارش»

د چکري، چهلستون او خورد کابل ځلي هغه نور شاهدان دي چې هغه د تاریخ په بیلا بیلو ابعادو کې ځلوي. د هغه لرغونې او معاصرې ودانۍ د کابل تدریجي پراختیا ښیي. بالاخره دوروستیو دو ولسیزو ورانۍ او تخریبات د هر اوسیدونکي هیوادوال زړه ته تکان ورکوي چې د بنسټ پالنې پرمبنا د هغه د ښاري بیرته پاتیوالی او انحطاط ښکار ندویي کوي. کابل لاتراوسه پورې د افغانستان د پلازمېنې او مرکز په توګه له خورا زیات اهمیت څخه برخمن دی چې د هغه د ټولنیزې، تاریخي، اقتصادي او هر اړخیزې ودې ښیګنې د دې اثر په بیلا بیلو برخو کې څیړل شوي دي. د کمیت او کیفیت له مخې په هره ارزښتمنه برخه باندې خبرې شوي چې د ګرانولو ستونکو د ګټورو او مفیدو نظریو پربنسټ د دې رسالې ګټورتیا او اغیزمنتیا لاپسې ښه کیدای شي.

زه د دې رسالې د لیکوال په توګه د اکبر د محترمې مؤسسې د اریک د ګرځنده کتابتون د پرله پسې زحمتونو او نه ستړې کیدونکو هڅو چې تل یې د افغانستان د ملي ویاړونو د راژوندي کولو په لارکې کوي، په ډیرې مننې سره یادونه کوم او د لازیاتو بریالیتوبونو هیله یې کوم.

پوهاند غلام جیلانی عارض

د کابل پوهنتون استاد

## لومړی څپرکی

# د کابل موقعیت

د کابل جغرافیایي موقعیت د ښار، ولایت یا حوزې په توګه د اداري او سیاسي ځانګړو مفاهیمو له نظره هر یو بیلا بیلې وجهې لري چې دلته به یې په جلا جلا توګه تر څېړنې لاندې ونیسو:

### کابل د ښار په توګه:

د کابل ښار په خپل اوسني موقعیت غالباً ( ۳۵۰۰ ) کاله پخوا یو کلي واوبس. د هغه لومړنی کرنیز کلی د آسمایي غره د ختیځ په څوړو کې د اوسنیو ده افغانانو او د کابل سیند ترمنځ له ختینو کورونو څخه آباد او جوړ شوی و. د وخت په تیریدو سره د کابلشاهانو د واکمنۍ په دوره کې د کابل بالاحصار د شیر دروازې او آسمایي غرونو د شاوخوا د یوالونو په اساس ډیر انکشاف وکړ او دیوه دفاعي، ستراتژیکي ښار په توګه د کابلشاهانو د حکومت یو سیاسي ښار شو ( ۹۰ ق م ). له دې وروسته دغه تاریخي ښار د دفاعي، سیاسي او تجارتي ارزښت پرېنسټ د پیړیو او مهالونو په اوږدو کې اوسنی حالت ځانته غوره کړ. د هغه دقیق جغرافیایي موقعیت په دې ډول تر لاسه کولی شو:

دهغه وروستۍ شمالي برخه د شمالي عرض البلد ۳٤ درجې او ۳۵ دقیقې.

د هغه وروستۍ جنوبي برخه د شمالي عرض البلد ۳٤ درجې او ۲٦ دقيقې.

د هغه وروستۍ ختيځه برخه د ختيځ طول البلد ٦۹ درجې او ۱۷ دقيقې.

د هغه وروستۍ لويديځه برخه د ختيځ طول البلد ٦۸ درجې او ٥٤ دقيقې.

د کابل ښار له مرکز څخه د شمالي عرض البلد ۳٤ درجې او ۳۱ دقيقې او د ختيځ طول البلد ٦۹ درجې او ۱۲ دقيقې تيرېږي.

له شمال نه د جنوب پرلور د ښار پراختيا ۱۳ کيلومتره او له ختيځ نه لويديځ خواته ۲۱ کيلومتره ده، مجموعي مساحت يې ۲۸٦ کيلومترو ته رسيږي. د خيرخانې، هزاره بغل او خواجه رواش غرونه د هغه شمالي وروستۍ برخه، جنوب ته يې سرآسياب، ختيځ لورته يې څرخي پول او تنگي غارو او لويديځ ته يې د پغمان دوه لارې واقع دي. له سمندر څخه د کابل د سطحې لوړوالې (۱۸۰۳) متره او د شير دروازې له څوکې څخه ۲۲۱۸,٥ مترو ته رسيږي.

## کابل د ولايت په توگه:

د کابل ولايت چې (٤٥۸٥) مربع کيلومتره مساحت لري د افغانستان په جنوب ختيځ کې پروت دی. شمال ته يې د پروان او کاپيسا ولايتونه او جنوب ته يې د لوگر ولايت، ختيځ ته يې د لغمان او ننگرهار ولايتونه او لويديځ ته يې د وردگو ولايت واقع دی. نفوس يې (۲,۱۰۷,۷٦۱) تنه او په هر مربع کيلومتر کې يې د اوسيدونکو شمير (٤٥۹) تنه دی. د کابل ولايت لاندينۍ اولسوالۍ او علاقه داري لري:

چهاردهي، پغمان، بگرامي، ده سبز، ميربچه کوټ، قره باغ، سروبی،

شکردره، استالف، خاک جبار، چارآسیاب او کلکان. د کابل ډېره لوړه نقطه د پغمان غر دی چې د سمندر له سطحې څخه ۴۷۰۰ متره لوړ والی لري.

## کابل د یوې حوزې په توګه:

بابر پاچا په تزک بابری کې دغه موضوع داسې تشریح کړې ده چې په صراحت سره د کابل حوزه افاده کوي: «کابل له څلورم اقلیم څخه دي او د معمورې په منځ کې واقع دی ختیځ ته یې لمغانات (لغمان)، پرشاور، کاشغر، لویدیځ ته یې هغه غرونه دي چې کرنو او غور په همدغو غرنیو ځایونو کې دي، شمال ته یې د قندز ولایت او اندراب پراته دي، د هندوکش غر یې ترمنځ دی او جنوب ته یې فرمل او نغروبنو پراته دی.».

په دې ترتیب د کابل حوزه له هغو سیمه ییزو مفاهیمو څخه ده چې د کابل د سیند له سرچینې نه تر هغو چې شمالی او جنوبی مرستیالان ورسره یوځای کیږي، بلکی لاله هغه هم وړاندې د کابلستان پراختیا بیانوي.

## د کابل اقلیم:

د کابل د ښار او ولایت اقلیم په یوه ورته او همشکله ردیف کې واقع دي، ځکه چې د کابل ښار په کابل ولایت کې د یو جزء په توګه موقعیت لري. د کابل په اقلیم کې اغیزمن عوامل تر ټولو لومړی د شیردروازې، آسمايي، د پغمان او د قوروغ د غرونو شته والی دی، چې د کابل پر آب و هوا د کتنی وړ اغیزه لري. د سمندر له سطحې څخه لوړ والی د هغه یو بل عامل دی، کابل ۱۸۰۳ متره، د پغمان غر ۴۷۰۰ متره او د شیر دروازې غر ۵ ,۲۲۱۸ متره د

بحر له سطحې څخه لوړ پروت دی، چې د پسرلي او ژمي په لومړيو کې واورين وي، د هغه د پسرلي او يا د مني بارانونه د کابل په ښار او ګاونډيو کليواو بانډو باندې د يادونې وړ اغيزه لري.

د ژمي د سړو بادونو لګيدل چې د شمالي صفحاتو له لوري د کابل په لور چليږي، په تيره بياد سايبريا ساړه بادونه يا د ژمي په مهال سړه جبهه دواورې او باران داوريد و سبب ګرځي او د پسرلي په لومړيو کې د کسپين د سمندرګي له لوري مرطوب جريانونه د حمل او ثور په مياشتو کې د وقفه يې اورښتونو سبب کيږي او په همدې توګه په اوړي کې د فارس د خليج مرطوبه هوا د کابل په ښار کې د مؤقتي اورښتونو سبب ګرځي. په پسرلي او اوړي کې د شمال له خوا د چاريکارو او ريګروان په استقامت د موسمي بادونو چليدل د کابل په چاپيريال او د هغه په شاوخوا سيمو زياته اغيزه لري، حتی تر دې چې د عمومي واټ په غاړه يې د توت ونې تريوې اندازې د کابل لور ته کږې کړې وې. همدارنګه د پغمان د غره له خوا د کابل په لور سيمه ايز بادونه محسوس دي. په خاص ډول په ګذرګاه کې ډير ساړه وي. چې د پامير سينما او هارتن پله په برخه کې شديد او څپونکي بادونه رامنځ ته کوي.

په اوړي کې له غرمو وروسته د شينې او بګراميو د غرونو په استقامت له دوړو او خاورو سره يو ځای نور سيمه ييز بادونه د کابل پر خوا چليږي چې چټکتيا يې په يوه ثانيه کې له (١٥) نه تر (٢٠) مترو پورې رسيږي. نسبي لنده بل په اوړي کې ډير لږ او د تبخير اندازه يې د اورښت په پرتله دوه درې ځله زياته ده. په ١٩٧٨ کال کې د کابل د تبخير ټوله اندازه (١٦١٠) ملي متره او په کاريز مير کی (١٤٢٠) ملي متره وه، په داسې حال کی چې کابل کی د

اورښت ډېره لوړه کالنۍ اندازه له (۴۹۱) ملي مترو څخه تيرى نه کوي. په کابل کې د کالني اورښت ټيټه اندازه (۱۹۰) ملي متره او په وروستيو وچکاليو کې له (۱۰۰) او (۲۰۰) ملي مترو څخه نه زياتيږي چې د ځمکې لاندې اوبو د ښکته کيدلو لامل ګرځيدلى دي.

د کابل د تودوخې درجه هم د بدلون په حال کې ده. د تودوخې لوړه اندازه يې د سانتي ګرېډ له ۳۴ نه تر ۴۰ درجو او ټيټه اندازه يې ۱۰ درجې او په ژمي کې د سانتي ګرېډ منفي ۱۵ درجو ته راښکته کيږي. د کابل په ښار کې د هوا پيژندنې ارقام څرګندوي چې د کال په څلورو فصلونو کې د تودوخې درجه په منځنۍ توګه لاندېني نوسانات طې کوي:

- د وري په مياشت کې د سانتي ګريد له ۲۳ درجو څخه تر ۴,۱ درجو، د لمر د لګيدو زاويه ۵۵ درجې او ۵۷ دقيقې.

- د چنګاښ په مياشت کې د سانتي ګريد له ۷,۳۴ درجو څخه تر ۱۴ درجو، د لمر د لګيدو زاويه ۷۷ درجې او ۵۷ دقيقې.

- د تلې په مياشت کې د سانتي ګريد له ۸,۳۱ درجو څخه تر ۳ درجو، د لمر د لګيدو زاويه ۵۵ درجې او ۲۷ دقيقې.

- د مرغومي په مياشت کې د سانتي ګريد له ۲,۱۱ درجو څخه تر منفي ۷ درجو، د لمر د لګيدو زاويه ۳۱ درجې او ۵۷ دقيقې.

د دې ارقامو او شميرنو له کتنې څخه څرګنديږي چې د کال په اوږدو کې د تودوخې درجه د څلورو فصلونو له نظره او هم د لمر دلګيدو د زاويې له نظره د بدلون او نوسان په حال کې وي.

د موضوع بل عامل د سيوري او لمر خواته د غرونو او غرنيو سيمو موقعيت دى چې د کابل په اقليم باندې مستقيمه اغيزه لري؛ د بيلګې په توګه:

د آسمايي ځوړې سيورنې برخې چې نظر لمرنيو ځوړو برخوته سړې دي. په همدې توګه د قوروغ او شير دروازې د غرونو په شمالي او جنوبي ځوړو برخو کې د غه عامل خپله خاصه اغيز منتيالري. په شمالي عرض البلدونو کې د هغه موقعيت او له سمندر څخه لريوالې هم د کابل او د کابل د ښار د اقليم په ځانګړنو مستقيم اغيز ښندې ، پردې اساس د کابل اوړي وچ او ګرم او ژمي يې سوړ ، او يوڅه باراني وي چې د وچ تحت استوايي اقليم ځرګندوی او ښودونکي دي.

## محل: کابل

| | ګلني اورښت | منځنۍ تودوخه د سانتي ګريد په حساب |
|---|---|---|
| مرغومی | ۳۱ | ۲- |
| سلواغه | ۵۵ | ۰ |
| کب | ۶۵ | ۶ |
| وری | ۹٤ | ۱۱ |
| غويي | ۲۸ | ۱۶ |
| غبرګولی | ۲ | ۲۲ |
| چنګاښ | ۷ | ۲٤ |
| زمری | ۳ | ۲٤ |
| وږی | ۱ | ۱۹ |
| تله | ۳ | ۱۲ |
| لړم | ۱۸ | ۵ |
| ليندۍ | ۳۳ | ۰ |
| په ټول کال کې | ۳٤۰ | |
| ملی متره | | |

## د کابل جیولوژیکی جوړښت:

د کابل جیولوژیکي وضع د کابل د ښار او ولایت په کچه په ورته او مشابه جوړښت ولاړه ده، ځکه جیولوژیکي اغیزې پراخې سیمې راچاپیروي چې لږ تر لږه په یوه نسبتاً لویه حوزه کې شاملې وي.

د کابل ښار په شمول د کابل ولایت یو ملیون کاله مخکې د تنگی غاروتر سیمې یو لوی سمندرگی جوړاوه او د گذرگاه په سیمه کې هم د پغمان او للندر د اوبو په وړاندې یو لوی د یوال موجودو. د یخچالي دورې په پای کې چې نورې سیمې یخچالونو پوښلې وې، سخت اورښتونه رامنځ ته شول او دغه لوی سمندرگی له اوبو ډک شو. د هغه په ځمکه باندې له ۲۵ - ۲۰ مترو ډول ډول پریړو رسوبونو تراکم وکړ. دغه سمندرگي د تنگي غارو خواته ورو ورو خپله لارو موندله او په تدریجي توگه یې د ماهیپر پرلور په اوسني ژوروالي د یوې وړې درې د کیندلو په ترڅ کې د ښویدلو تخریبات عملي کړل. اوبو د تنگي غارو له لارې حرکت وکړ، په نتیجه کې هغه سمندرگی چې د کابل ولایت په سیمه کې و، ورو ورو ښکته شو، تر هغو چې د قاعدې د تل رسوبونوته ورسید او دغه رسوبونه په بیلا بیلو سیمو کې د للندر اولو گردسیند، د پغمان د کوچنی سیند (چمچمه مست) له تگلوري سره یوځای د اوبو د مجموعي جریان په واسطه پرې شوې، په هغو ځایو کې چې د اوبو د تگلوري رسوبونه نرم او له منځه وړي دي، ځمکه اواره او یا یې د اوسنیو سیندونو آرام ځای (بستر) او د موسمي سیلاوونو مجرایې جوړوله. په کوموځایونو کې چې رسوبونه سخت وو د ځمکې له سطحې څخه لوړ پاتې شوي، بیلا بیلې غونډۍ یې رامنځته کړي، لکه د مرنجان غونډۍ، د شهر آرا (برکی) غونډۍ، د کلای بلند غونډۍ، د

کلوله پشتې غونډۍ، د بي بي مهرو غونډۍ او څرخي پله ته څېرمه غونډۍ. که په ځير سره وکتل شي، د دغو غونډيو څوکې ټولې يو ډول جګوالی لري او سيندي او يخچالي رسوبونه په ورته ډول درس له خاور د سيند او کنګل له کريږونو څخه جوړې شوي موازي طبقې په هغو کې ورته بڼې لري، د زيږو کنګلي شګو طبقې او د کانګلو مراتونو کلکي کتلې چې له يو بل سره سمې او سختې شوي وي، له شګو او کريږ سره يو ځای د يو بل له پاسه ليدل کيږي، خو د کابل سيمه په منځنۍ جيولوژيکي دوره کې ټوله د يوه ستر سمندر تيتس Tethys په نامه په اوبو پوښل شوې وه او د دورې په پای کې د هماليا، الپ او هندوکش له لړيو سره يو ځای د صعودي خوځښتونو په نتيجه کې يې اوسنۍ لړۍ رامنځته کړې، دا لړۍ د صعودي خوځښتونو په نتيجه کې يې اوسنۍ لړې را منځته کړې، دا لړې د صعودي خوځښتونو په وخت کې په بيلا بيل لوړوالي سره ځای پر ځای شوي او د تخنيکي خوځښتونو د سختوالي له امله په دغو غرونو کې، پيچلتيا وي، انحناوي او ماتېدنې رامنځته شوې. ځينو غرنيو غاړو په بدليدونکو ډبرو او د بيلا بيلو منرالونو په ترکيب سره تبارز وکړ. د هر غره د پريوتو لورې بيل او ميلان يې په ځانګړو زاويو سره رامنځته شو د غرونو د غه لړۍ زياتره له ختيځ څخه لويديځ ته پرتې دي او ځينې کوچنې ځانګې يې په استثنايي توګه شمال – جنوب لوري لري؛ لکه د پغمان غر، د دې غرونو ژورې او لوړې برخې بدليدونکي ډبرې لري، په هره لړۍ کې زياتې کوچنۍ او سترې ماتيدنې ليدلې کيږي. د چمن ستــره ماتــيدنه چې له پامير څخه پيل شوې او له کابــل ولايت څخه تيريږي او د ماتــيدنې يوه بلــه کرښــه د پغمان د غره په اوږدوالي کې هم شته.

خو د کابل او نور افغانستان جیولوژیکي جوړښت پیچلي دي، ځکه د بیلا بیلو دورو ډبرې له یو بل سره یو ځای شوې دي، کله یو په بل کې تداخل لري چې تشخیص او تفکیک یې د دې څانګې عالمان له زیات غور او ځیر تیا سره مخامخ کوي، نو په دغو څلورو دورو کې مطالعه کیږي:

## ۱- پري کامبرین:

د کابل شاوخوا خورالرغوني جیولوژیکي ډبرې چې د پري کامبرین په دورې پورې اړه لري، ابرک لرونکې شیست، زرغون شیستونه او د کرستالین او ګنیز آهکونه لري.

## ۲- پالیوزوییک:

د کابل په جنوب لویدیځ کې د پالیوزوییک ډبرې، شګلنې آهکې بدلیدونکې ډبرې دي، هغه آهکونه چې د پغمان غره د شمال ختیځ په وروستۍ برخه کې لیدل کیږي د منځنۍ دورې په دویمه پیړۍ کې رامنځته شوي دي، د خورد کابل په حوزه کې د کاربن په پیړۍ پورې مربوطې آهکي ډبرې دي. برسیره پردې په پای کې یې خاکستري آهکي ډبرې او نور رنګي آهکي ډبرې هم رامنځته کړې دي.

## ۳- مزوزوییک:

د معرفت الارضي په منځنۍ دوره کې بدلیدونکي ډبرې او رسوبونه د مرمر او تباشیر له نوعې څخه دي. خو د کابل په جنوب ختیځ د کابل او بتخاک

په حوزه کې خړ رنګه شفافې آهکي ډبرې ليدل کيږي چې بيلا بيل فوسيلونه لري. حيواني او نباتي متحجره پاتې شونې هم په هغو کې تر سترګو کيږي، د کول حشمت خان په نامه چې د کابل په لويديځ کې کوم کوچنی جهيل شته د پخوانی ستر سمندر پاتې شونې دي چې د هماليا د ځارويو فوسيلونه په کې تشخيص شوي او بيلا بيل آهکونه پکې ليدل شوې دي.

## ٤ - سينوزوييک:

د هندوکش د غره زياتره لړۍ او ځانګې يې په دې پړاوکې د خپل تشکل او بشپړتيا له حالت سره مخامخ شوی، د پغمان، شير دروازې، آسمايی، قوروغ، بګراميو، کوه صافي او د تنګي غارو شاوخوا غرونه را منځته شوي او د دغو غروونو په صعود يا پورته کيدو سره يخچالي دورې پيل شوې، د اوبو د جريانا تو له آثارو ځخه رسوبات را منځته شول، د کابل د سيند په دوا ړو غاړو کې سمندري شګلنې ډبرې او يخچالي رسوبات را منځته شول چې نښې نښانې يې د کابل په اوسنيو غونډيو کې په ډاګه ليدل کيږي.

د پغمان په غره کې د اوسپنې شته والی په دې سيمه کې د فلزاتو بډاينه وړاندې کوي. د امير شېرعلي خان په زمانه کې يې د دغې سيمې له اوسپنې ځخه د کابل په ماشينخانه کې وسلې او افزار برابرول. په ماهيپر کې د شاه مقصود، تلک او د ابرک د ډبرو کان او د نغلو په غرونو او لوګر کې د مسو کان د کابل په حوزه کې د زياتو فلزاتو د شته والی مصداق دی چې په بيلا بيلو جيولوجيکي دورو کې را منځته شوي دي.

په چهلستون کې د ګارنټ مايکاشيست ډبرې او د للندر په دره کې د

چونې ډبرې آن د مرغگیرانو په دره (د قوروغ د غره په لویدیځ) کې د بورانېمو په ترکیب سره ډېر مهم جیولوژیکي ارزښتونه دي. په هزاره ء بغل کې د مرمر ډبرې چې دودانیو لپاره ضروري دي د مزوزوییک د منځنۍ دورې د بدلیدونکو ډبرو تعاملات څرگندوي.

د ماهیپر په سیمه کې ستر درز (فالت) لیدل کیږي چې آن د نغلو د بند د لویدیځې رسوبي ساحې د طبقو په میلان باندې یې اغیزه کړې ده. په هر حال په کابل او هندوکش کې جیولوژیکي خصوصیتونه پیچلي دي چې د علي آباد په غرونو او د سیلو په استقامت په لویدیځو څوروکې دغه پیچلتیا وې او انحناگانې په هماغو پیچلتیاو سره په ډاگه کیږي چې د دغې څانگې د څیړونکو لپاره د پاملرنې وړ دي.

## غرونه:

د هغو غرونو لړۍ چې د کابل په ښار او ولایت کې شته او د غې سیمی ته یې ښکلې طبیعي او دفاعي منظرې وربښلي دي په دې ډول دي:

### د آسمایی غر:

دغه غر د کابل د اوسني ښار په نږدې مرکز کې پروت دی او په حقیقت کې د شیردروازې د غره لړۍ ده چې د گذرگاه په سیمه کې په یخچالي دوره کې له یوبل سره نښتي او یوځای وو، خو د چهاردهي د حوزې د اوبو له امله چې کوچنی سمندرگی و د زمانې په تیریدو سره د ښویدنې په نتیجه کې د کابل او للندر د سیند تل ښکته شو او په نتیجه کې یې گذرگاه را منځته کړه او د

آسمایي او د سخي غر یې له شیر دروازې څخه جلا کړ.

د آسمایي د غره لوړوالی (٢١١٠) متره او د هغه په شمال لویدیځ کې د سخي غر (١٩٧٥) متره لوړوالی لري. د علی آباد غر ددغې لړۍ په لویدیځ کې د (٢١٢٦) مترو په لوړوالي پروت دی. د سخي غاښې او د باغ بالا غاښې ښار ته د خلکو د تګ راتګ لاره ده. ګذرګاه د چهار دهي او پغمان سیمې او د جمال میني، څلورمې کارتې او دریمې کارتې ناحیې د کابل له مرکز سره نښلوي، دغه مهمه لړۍ د سینو زوییک په دوره کې د اوبو له تل څخه را وتلې او په هغې کې د اوسپنې او کوارتز په ترکیب سره لوړې او سختې ډبرې شته. په دې غره کې د چونې ډبرې او د سره او روښانه کوارتز ډبرې شته. د انګلستان د سفارت په وړاندې د غره په لمن کې د چونې د ډبر و طبقه لیدل شوې او په باغ بالا کې هم د چونې ډبره لیدل شوې ده. د باغ بالا په ډډه کې د بیوتیت تورې ډبرې سلیت لرونکی ابرک، کوارتز او د ګنایزوشیست تورې ډبرې هم څیړل شوې دي او د بادام باغ غر هم همدغه ترکیبات لري، دغه لړۍ د قرغې په استقامت دوام لري او د قرغې دغره په سیمه کې یوه بله څانګه یې یو کوچنی غرجوړوي چې په یوه برخه کې یې د خلکو ستر زیارت (خواجه جمع) دی.

## د آسمایي د غره د تسمیې وجه :

د کابل د هندو شاهانو په دوره کې په لومړۍ هجري پیړۍ کې د هندوانو یو ائخنی عبادت ځای (درمسال) د کابل په ښار کې جوړ شوی و. د آسمایي د غره په ختیځه لمن کې و، چې دغه عبادت ځای د آسمایي په نامه شهرت درلود خو هغه د اسلام لښکرو د برېدونو په وخت کې ویجاړ شو او کومه نښه نښانه یې

پاتې نشوه. وروسته وروسته د سېمې هندوانو د هغه موقعیت تثبیت کړ او په هماغه ځای کې یې بیا عبادت ځای جوړ کړ چې هغه هم د آسمایي درمسال په نامه شهرت لري. داسې یادونه هم شوې ده چې د آشامایي کلمه د هواد مور مانا لري او دغه نوم د کابل شاهانو په دوره کې په دغه غره اطلاق شوی دی او د زمانې په تیرېدو سره په آسمایي بدل شوی دی. خو د کابلشاهانو په دوره کې په دغه ځای کې د بودیزم نفوذ ډېر زیات و او زیات شمیر لرغوني نومونه او نښې نښانې بودایي جرړې لري. له آسمایي سره د هندوانو د لرغوني درمسال د نامه اړیکې زیات امکان لري.

## د شېر دروازې غر:

دغه غر په حقیقت کې د چهلستون د غره امتداد دی، لوړوالی یې (۵ , ۲۲۱۸) مترو ته رسیږي چې دواړه څوکې یې سره نږدې دي او د دواړو څوکو ترمنځ او ارتخت شته چې د زنبورک شاه د تخت په نامه یادیږي. کاسه برج او بیني ګاه او د کابل زاړه دیوالونه د یو بل په امتداد تراوسه پورې په دغه غره کې ولاړ دي. د شیر دروازې غر د ګنایز او کوارتزله ډبرو او له کرستلي متبلورو ډبرو څخه جوړ شوی او په دې غره کې د مرمر، چونې، شاه مقصود او د ریشې ډبرې شته، د برج په برخه کې د غره په جنوبي لمن کې د سپین کوارتز او د ګنایز شنې رنګې ډبرې لیدل شوې دي. د چهلستون په غره کې ګارنت، مایکاشیست ډوله ډبرې شته او له هغو څخه د ژرندې د ډبرې د جوړولو په مقصد کار اخیستل کیږي. د کرستل ډبرې د تختې او یاد کوچنیو ستنو په بڼه لیدل کیږي چې له همدې امله دغه سیمه د چهلستون په نامه شهرت لري.

برسیره پردې د چهلستون په غره کې شګلن کوارتز او سلیت لرونکي ابرک ډیر لیدل کیږي. د چهلستون د غره په پوزه کې د مسو او د اوسپنې لرونکو ډبرو مرکبات هم شته.

## د شیر دروازې د تسمیې وجه:

په لرغوني کابل کې عیاران او شیربچه ګان موجود وو چې ګذر شیربچه ها «د شیربچه ګانو ګذر» بالاحصار او د عاشقان او عارفان د لمنې په وروستۍ برخه کې او دغه راز د سید مرد علیه رحمه د زیارت د شمال په لمن کې یو ګذر موجود وو چې د جوان شیرها د کوخي په نامه هم یادیده. برسره پردې د بالاحصار د غونډۍ او د اصلي غره ترمنځ یو معبر او ګذرګاه شته چې په دې برخه کې د بالاحصار تاریخي غرونو د اوسپنیزې دروازې په واسطه زوړ ښار له شهدای صالحین سره نښلاوه، دغې دروازې ته نږدې د کابل شیربچه ګان، جوان شیران او عیاران تل په سپورت او تفریح، غیږې نیولو، د لرګیو په لوبو او میلوبوخت و چې دغه ساحه د خلکو ستر تفریح ځای بلل کیده، دغې دروازې کرار کرار په شیر دروازې شهرت پیدا کړ او له هغې سره نښتي غره د شیر دروازې د غره په نامه شهرت پیدا کړ او له هغې سره نښتي غره د شیر دروازې د غره په نامه شهرت پیدا کړ، یو وخت د زنبورک د غره په نامه هم یادیده، یعنې کله چې د کابلشاهانو پاچا زنبورک شاه په دې سیمه کې واکمن و.

## د پغمان غر:

د پغمان د غره لړۍ د کابل د لویدیځ په استقامت د (۴۷۰۰) مترو په

لوړوالي د یوه ستر دیوال په توګه رامنځته شوې ده. د دغه غره په شمالي برخه کې استالف، ګلدره او شکردره واقع دي او دغره له پاسه ځانګړې ډنډ شته، د پغمان غر دارغنده په استقامت امتداد مومي او وروسته د تخت غاښي ته رسیږي چې له هغه وروسته د قوروغ غرپیل کیږي. د پغمان د غره په ختیځو برخو کې کوهدامن او کاریز میر ته نږدې د ګنایز، شیست او د پګماتیت (Pegmatit) ډبرې شته. د پغمان پګمتیت د نرۍ له ډیرې ښې اوسپنې څخه ګڼل کیږي چې په سلو کې نږدې دوه او یا اوسپنه لري. د پغمان د غره په درې زره متری لوړوالي کې خاورین سلیټ او کوارتز پیدا کیږي. په دې لړۍ کې د ابر ک لرونکي سلیت او ګرافیت ډبرې هم شته.

د پغمان په غره کې بیلا بیلې درې او جلا جلا ډ ګرونه شته او د ډبرو په ترکیب کې یې هماتیت هم لیدل شوي دي. په مجموع کې د دغه غر یو ستر دیوال دی چې د هزاره جاتو لوړه سطحه له کابل څخه جلا کوي.

## د قوروغ غر:

دغه غر د کابل په جنوب لویدیځ کې پروت دی، له ختیځ څخه د لویدیځ په لوري یې امتداد موندلې دی او د تخت له غاښي څخه تر دارالامان او د افشارو تر غونډۍ پورې یې پراختیا موندلې ده. د هغه مخ په شمال ځوړو کې د مرغګیرانو، قلعه ء قاضی او د چهاردهي کلي او په جنوب کې یې د للندر دره موقعیت لري، اعظمي لوړوالي یې (۳۲۲۷) متره دی. د تخت غاښی هغه ځای چې د کابل - غزنی سر ک ورڅخه تیریږي ( ۲۲۳۰ ) متره لوړوالی لري

د قوروغ په غره کې په عمومي ډول د کوارتز په رنګونو سره د ګرافیت. امفیبولیت او ابر ک لرونکی شیست ډبرې لیدل کیږي.

دغه راز د قلم لرونکی یا گرافیت چونې یوه پرېړه طبقه چې د ختیځ لویدیځ استقامت تعقیبوي، شته. د ډبرو په منځ کې سلیت لرونکی کوارتز د نازکواو عمودي تختو په بڼه او دانه لرونکي کوارتز په سپین رنگ سره په دغه ځای کې لیدل کیږي. د قوروغ د غره د ختیځ په وچه دره کې د ډبرو په ترکیب کې د یورانیم مواد لیدل کیږي چې یوه زیاته اندازه یې د پخواني شوروي دیرغل په دوران کې چرنوبیل ته ولیږدول شول.

د بیلا بیلو ډبرو دغه ټول تشکیلات د پالیوزوییک په لرغونې دورې پورې اړه پیدا کوي، خود غره د بدنې اصل د مزو زوییک په وروستیو وختو او د سینو زوییک په لومړیوو ختو کې صعود کړې دې چې په ځینو برخو کې بدلیدونکې ډبرې او کانگومراتونه پیدا شوې دي.

د صافي غر (کوه صافی):

د صافي غر، د خواجه رواش غر، بابه قشقار او د خواجه چاشت غر د کابل د شمال ختیځ په استقامت او ده سبز ته نږدې موقعیت لري. د پغمان د غرونو په ردیف کې یې صعود کړی دی چې د خیرخانې په شمال کې د هزاره بغل غر د دغو غرونو د لړی له جملې څخه گڼل کیږي.

د صافي دغره لوړوالی (۳۰۶۱) متره او هغه ته څیرمه لړۍ د کاوون غر د کابل ولایت په شمال ختیځ کې د (۳۳۱۲) متر و په لوړوالي لیدل کیږي. د صافي د غره د ډبرو په ترکیب کې دده سبز په برخه کې د چونې او مگنتیت لرونکو ختیو، کرستالین، گنایز، کوارتز، په شنه آبي رنگ د شاه مقصود ډبرې، شنه بخن او نصواري ژیړ رنگی سلیت لرونکی ابرک، د ډبرو او د فلدسپار،

او سپنې او د مرمرو طبقې شته. د لمبه غر دده سبز په سیمه کې په سلو کې دوه او یا اوسپنه لري چې زیات اقتصادي ارزښت لري د صافي د غره د شمال لویدیځ په وروستۍ برخه کې یوه کوچنۍ لړۍ شته چې د تورغر په نامه یادیږي.

## دلته بند، چکړیو، تنگی غارو او د سروبي لړۍ:

دغه لړۍ د کابل په ختیځ کې موقعیت لري. د خورد کابل په سیمه کې دلته بند دغره لوړوالي (۳۳٤۲) متره او دلته بند د کلي په جنوب کې یې لوړوالی (۳۰۲٤) متروته رسیږي، یوې څانگې یې د لوگر په استقامت پراختیا موندلې چې د ډبرو د ترکیب له پلوه د نورو غرنیو گاونډیو لړیو په شان یو خیل دي، په دې لړۍ کې د ماهیپر په برخه (د دویم تونل په شمال) کې د شاه مقصود ډبرې، ابرک، تلک او دریشی ډبرې شته چې تر تولید او استحصال لاندې دي، برسیره پردې په دغو لړیو کې د کوارتز، پگماتیت او د گرافیت ډبرې هم لیدل کیږي، گزک غر او د شینوارو غر هم د همدغو لړیو په جمله کې تصنیف کیږي.

## غاښي:

هغه غاښی چې د کابل ښار او د کابل ولایت له گاونډیو سیمو سره نښلوي، په دې ډول دي:

### د خیرخانې غاښې (کوتل خیرخانه):

د کابل په شمال لویدیځ کې د پنځلسو کیلومترو په واټن د سمندر له سطحې څخه (۱۹۲۲) متره لوړ دی او کابل له کوهدامن سره نښلوي.

## د تخت غاښي :

د کابل په لویدیځ کې میدان له کابل ښار سره نښلوي او د سمندر له سطحې څخه ( ۲۲۳۰ ) متره لوړوالی لري.

## د کچین غاښي (کوتل کچین) :

د ( ٤٠٠٠ ) مترو په لوړوالي غوربند د کابل له ولایت سره نښلوي.

## دلته بند غاښي (کوتل لته بند) :

د کابل په ختیځ کې د سه بابا او بتخاک ترمنځ د ( ۲٤۲۲ ) مترو په لوړوالي پروت دی.

## د بغل غاښي (کوتل بغل) :

د پغمان په شمال کې د ( ۲۷۵۰ ) مترو په لوړوالي کابل د هزاره جاتو او غوربند له لوړې سطحې سره یوځای کوي.

## د سفید خاک غاښي (کوتل سفید خاک) :

د (۲۵٦۳) مترو په لوړوالي د ارغنده په جنوب لویدیځ کې پروت دی.

## د خنگل غاښي:

د ( ۲۷۵۰ ) مترو په لوړوالي د ده سبز په ختیځ کې پروت دی.

## د پای منار غاښی:

د ( ۱۸۵۰ ) مترو په لوړوالي د کابل په شمال کې موقعیت لري.

## د یک لنگه غاښی:

د سیدنور محمد شاه مینې د ختیځ په استقامت د ( ۱۸۳۵ ) مترو په لوړوالي د کابل او بگرامیو ترمنځ پروت دی.

برسیره پردې د کابل په ښار کې یو شمیر غونډۍ شته چې له رسوبي ډبرو، شګلنو طبقو او له کانګلو مراتو نو څخه جوړې شوي دي، لکه د رحمان مینې او د شاه شهید د کارتې په جنوب کې د مرنجان غونډۍ، د بي بي مهرو غونډۍ د شهرآرا غونډۍ، کلوله پشته، د تاج بیګ غونډۍ، د خاک بلخ غونډۍ او د قوالانو غونډۍ.

## د کابل سیندونه:

هغه سیند ګوتې چې د کابل په ښاراو یا ولایت کې بهیږي عبارت دي له: چمچه مست سیند، د للندر سیند او د لوګر سیند څخه چې د پسرلي په موسم کې تریوې اندازې پورې کافي اوبه لري، خو د دوبي په موسم کې یې اوبه بیخې کمیږي.

## د چمچه مست سیند:

دغه سیند ګوتې د پغمان د غره له ختیځو څوړو څخه سرچینه اخلي د پشه یي له درې او چند لبایي څخه تیریږي او وروسته د خواجه مسافر په استقامت بهیږي او د کشکک په برخه کې د پغمان له کوچني سیند ګوتې سره یوځای کیږي چې له اوریاخیلو او خواجه لکن څخه تیریږي او زیاتې ساحې خړوبوي. دارغنده سیند دارغنده له درې څخه چې د پغمان په جنوب کې موقعیت لري سرچینه اخلي او د فاضل بیګ په برخه کې سره یوځای کیږي چې په مجموعي ډول دغه سیند ګوتې د چمچه مست سیند په نامه یادیږي، ځکه چې په کمواوبو او کم اورښت سره سیلاوپکې بهیږي او د کرنې د ځمکو د

ویجاړتیا سبب ګرځي، په عادي حالت کې د پغمان، ارغنده او چهاردهي د ځمکو د خړوبولو سبب کیږي.

دغه سیند ګوتی له هغه وروسته چې له پل سوخته څخه تیریږي د دریمې کارتې په برخه کې له پل سرخ څخه تیریږي او وروسته د خواجه ملا په برخه کې د محمد غوث د پله په سیمه کې د دارلامان له سرک څخه تیریږي او د هارتن پله ته رسیږي او د هارتن پله ته له رسیدو مخکې د للندر له سیند ګوتی سره یو ځای کیږي.

## د للندر سیند ګوتی:

د للندر سیند ګوتی د ریشخورو، سرآسیاب، چهلستون، ده دانا او دواصل آباد له ځمکو څخه تیریږي او د ګذرګاه، ریشخورو او د سرآسیاب په سیمو کې د کرنې د ځمکو د خړوبولو او سمسورتیا سبب کیږي. د کابل ژوبڼ د جنوب له استقامت څخه تیریږي او په همدې ځای کې مخکې له دې چې د هارتن پله ته ورسیږي د چمچه مست له سیند سره یو ځای کیږي او وروسته د ختیځ په لور بهیږي او له پل باغ عمومي، پل خشتي، پل محمود خان د مکروریا نو له پله او له څرخی پله څخه تیریږي او تنګی غارو ته له رسیدو مخکې د لوګر له سیند سره یو ځای کیږي.

## د لوګر سیند:

د لوګر سیند د اونی له لوړو برخو څخه د (۳۵۰۰) مترو په لوړوالي سرچینه اخلي د میدان په لور حرکت کوي او په دغه ځای کې د میدان سیند په

نامه یادیږي د دغه سیند سور (عرض) د میدان په اوارېو کې شلو مترو ته رسیږي له لنډواتهن وروسته د نرخ او سنګلاخ له سیند ګوتهو سره یو ځای کیږي او تنګي سیدان ته رسیږي. دده یعقوب، بګرامیو او د شیني په برخو کې له دغه سیند څخه د اوبو لګو لو په مقصد زیا ته استفاده کیږي جلا جلا سترې او کوچنۍ ویالې کیندل کیږي او وروسته د آدم خان کلاله لویدیځې برخې څخه تیریږي او د شمال په لور بهیږي او وروسته د صنعتي پارک په جنوب کې لویې لارې ته نږدې د الو خیلو په ختیځ کې له کابل سیند سره یوځای کیږي او په ګډه د تنګي غارو په لور بهیږي.

د تنګي غارو د غرونو اوبه هم له کابل سیند سره یو ځای کیږي او وروسته د نغلو په ستره زیرمه کې د پنجشیر او غوربند له سیند سره یوځای کیږي. مخکې له دې چې د نغلو زیرمې ته ورسیږي په ماهیپر کې ښکلی ځروبی (آبشار) جوړوي او له هغه څخه د ماهیپر بریښنا هم تولیدیږي. له هغه وروسته چې د نغلو د اوبو له بند څخه د ختیځ په لور بهیږي، په سروبی کې هم د غوربند او پنجشیر له سیند سره یو ځای د اوبو بریښنا د تولید سبب کیږي چې له هغه څخه د صنعتي دستګاوو او د کابل ښار د روښانه کولو له پاره کار اخیستل کیږي او هغه هم په دې ترتیب:

| د بریښنابند | د تولید قدرت | په ۱۳٤۸ کال کې د یوه ساعت تولید په کیلو واټ |
|---|---|---|
| د نغلو د بریښنا دستګاه | ۹۷ زره کیلو واټه | ۲۳۲,٦۲۳,۰۰۰ |
| د سروبی د بریښنا دستګاه | ۲۲ زره کیلو واټه | ۵,٤۷۲,۲۵۵ |
| د ماهیپر د بریښنا دستګاه | ٦۰ زره کیلو واټه | ۱۱,۷٤۵,۰۰۰ |

د دغو دريو دستګاو د اوبو بريښنا د انرژی توليد د ښاري کورونو په رو ښانولو برسيره د کابل د ټولو صنعتي تأسيساتو، دوړيو اوبدلو په فابريکو، د جنګلک او د حجاری اوبټون د فابريکو، دولتي او شخصي مطابعو، نساجيو، د کار د قواو او په صنعتي پارکونو کې د نورو صناعتي دستګاوو او د قيراچولو په فابريکه او په نورو برخو کې کارول کيږي چې اوس زياتره صناعتي دستګاوې ويجاړې او غير فعالې دي.

## ويالې:

هغه فرعي ويالې چې د کابل په ښار او ولايت کې د اوبو لګولو په مقصد کارول کيږي، په دې ډول دي:

### د چنغور وياله:

دغه وياله له ارغنده څخه چې د پغمان په جنوب لويديځ کې موقعيت لري، پيل کيږي او د قلای قاضي او چهاردهي د ځمکو د خړوبولو سبب کيږي.

## بالا جوی:

د للندر له سيند ګوتې څخه جلا کيږي او واصل آباد او د توپ د غونډۍ له لمنې څخه تيريږي او د زاړه ښار په استقامت د باغ قاضي د سيمې د خړوبولو اوسمسور تياسبب کيږي.

### د ده دانا وياله:

د للندر له سيند څخه اخيستل شوې او د ده دانا او ده قلندر ځمکې خړوبوي.

## د ریشخورو او سرآسیاب ویاله:

د للندر له سیند څخه جلا کیږي او د اوبو لګولو له پاره ور څخه استفاده کیږي.

دده دانا او د پل محمود خان په برخو کې هم د کابل له سیند څخه جلا جلا ویالې اخیستل شوي چې د صنایعو د ښوونځی په برخه کې دده دانا د خلکو اړتیاوو دلرې کولو او د اجمیر ویالې په نامه دیکه توت، قابلبای، هود خیلو او دده سبز د سیمو د خړوبولو سبب کیږي. د کابل د سیند په بیلا بیلو برخو کې یو لړ فرعي ویالې لیدل کیږي چې ترقلای جنګي، شیر پور او بي بي مهرو پورې یې اوبه د ځمکو د خړوبولو له پاره کارول کیږي.

## په کابل کې د اوبو رسولو معاصرې شبکې:

په ویالو، سیندونو او سیند ګوټو برسیره د څښاک روغتیایي اوبو ته د خلکو اړتیا احساسیده هماغه وو چې د اعلیحضرت امان الله خان په دوران کې د پغمان اوبه کابل ته ولیږدول شوې او وروسته د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه په زمانه کې جدي تدبیرونه ونیول شول. د روغتیایي اوبو زیرمې جوړې شوې او ژورې څاګانې وکیندل شوې چې له زیرمه کیدو او د روغتیا والی له بهیر وروسته د نلونو په واسطه په کابل ښاریانو باندې وویشل شوې او هغه هم په دې ترتیب سره:

۱ - د پغمان اوبه د کابل له لویدیځ څخه د سترو فلزي نلونو په واسطه دده افغانانو زیرمې ته لیږدول کیدې چې د غه زیرمه د زرو مکعب مترو اوبو ظرفیت لري او اوبه یې د کابل په مرکز، دوخت په شاهي ماني، او په نورو اداري

ځانګو باندې ویشل کیدې. دغه راز د زاړه ښاریوې برخې هم له دغو اوبو څخه استفاده کوله.

۲- د آسمایی د اوبو زیرمه: چې د (۷۵۰۰) مکعب مترو اوبو ظرفیت لري، او به یې د علاوالدین له ژورو څاه ګانو څخه برابرېږي او د (۲۵۰) او (۳۰۰) ملي متري نلونو په واسطه لیږدول کیږي او د جمال مینې، کابل پوهنتون، څلورمې کارتې، درییمې کارتې او د میرویس میدان د اوسیدونکو داړتیاو دلرې کولو له پاره کارول کیږي

۳- د پیر بلند او د باغ بالا زیرمې: چې هره یوه یې د لسوزرو مکعب مترو او د دولسو زرو مکعب مترو اوبو ظرفیت لري اوبه یې د افشار و او د قرغې له ژورو څاه ګانو څخه برابرېږي او د درې سوه ملي متري نلونو په واسطه لومړۍ زیرمې ته لیږدول کیږي او وروسته د مامورینو کارتې، باغ بالا، پروان مینې، خیرخانې مینې او د تایمنیو د پروژې په سیمو کې یې اوبه ویشل کیږي.
دغه اندازه اوبه دوګړو د شمیر د زیاتوالي له امله د کابل ښار له پاره کفایت نه کوي او د خلکو اړتیاوې لکه څنګه چې لازمه ده نه دي لرې شوي، برسیره پردې دوروستیو دوه نیمو لسیزو جګړو هم د اوبو رسولو شبکې زیانمنې کړې، د اوبو زیرمې ککړې شوي او د مامورینو کارتې، شیرشاه مینې، دریمې کارتې او د کابل پوهنتون او د ده بوري په ګډون د جمال مینې په زیاترو ځایونو کې د اوبو شبکې ویجاړې شوي، له دې امله ځینو غیر دولتې مؤسسو د همکارۍ لاس اوږد کړ او د هرو پنځو سو او یا اتیاو کورونو له پاره یوه ژوره څاه وکیندل شوه او اوبه یې د لاسي پمپونو په واسطه راوایستل شوې او د استفادې وړ وګرځیدې، دغه لاسي پمپونه ساتنې او پاملرنې ته اړتیا لري، له دې پرته له زیاتو ستونزو سره مخامخ کیږي.

دويم څپرکی

# د کابل د تسميې وجه او تاريخي لرليد

## د کابل د تسميې وجه:

دغه تاريخي ښار لومړی ځل د ريګويدا په سرودونو کې د کوبها (Kubha) په نامه يادشوی چې لرغونتيا يې څلور زرو کالوته رسيږي. دا روستا په پهلوي تفسير کې کابل د (کاپل) په بڼه ياد شوی دی چې د کابل نننی تلفظ ته نږدې دي. يوناني تاريخ ليکونکو کابل د کوفن په نامه ياد کړې دي او سينديې د کوفس په نامه ياد کړې دي. يوناني جغرافيه ليکونکي بطليموس په (١٦٧) ميلادی کې کابل د (کابورا) او (کارورا) په نامه او خلک يې د کابوليتا (Kabulita) په نامه ياد کړې دي. کوشاني پاچا کجولا کدفيزس دغه ښار د (ګه اوفو) يا (که- او- فو) په نامه ياد کړې دي. مشهور چيني زاير هيوان تسنګ (٦٣٢-٦٤٢م) د کابل حوزه د (فولی شی ستانګه) په نامه ياده کړې او پايتخت يې (هوفی نه) بللې دي. که چيرې نن په سمه توګه پاملرنه وشي د (کوبها -کوفن- کابورا او د که اوفو، ويپونه (کلمې) ټول د ژب پوهنې له پلوه سره اړوند او ګډې جرړې لري.

له بله پلوه کابل ښار د هغه سياسي، اقتصادي او د ستراتژيکی دفاع د ارزښت له امله په بيلا بيلو نومونو او القابو هم ياد شوې دي. په اوستا کې

د آریانا له شپاړس گونو ولایتونو څخه د اووم ولایت په توگه د (وای کرته) یعنې د ښکلي ښار په توگه یاد شوی دی.

او رتسپانا (ورتبانا) د لوړښار مفهوم په کابل اطلاق شوی دی چې په سانسکرت کې (اورد هسپانا) راغلی دي، لکه څنگه چې له تاریخي سندونو څخه ثرگندیږي، کابل ښار په هغه وخت کې په یوي لوړي غونډۍ باندې جوړ شوی و او د لوړ دیوال په بڼه یې دفاعي حیثیت درلود. د کابل بالاحصار د کابل اصلي ودانی وه او د بالاحصار په لمن کې د کابل پخوانی ښارو او ودانیویې د چکریو د منار ترڅنډو پورې دوام پیدا کاوه چې شپاړس کیلومتره ساحه یې نیوله. کابل ښار یې روښانه، ځلانده او لمریز ښار هم یاد کړی دی چې د (دش سایک) له کلمې څخه اقتباس شوې دي. ځینو ختیځ پوهانو د کابل لرغونی نوم د کاپیلا په نامه یاد کړې دي چې د یوه کوشاني شهزاده او د کنشکا د یوه منسوب نوم وو.

یو شمیر نورو وایي چې د آدم(ع) د یوه زوی نوم قابیل و چې همدغه د قابیل، کاپیلا، کاپول او د کابل نوم په دغه ښار باندی اینبودل شوی دی. په دې باب فولکلوري داستان هم ثرگند شوی دی. یو وخت د کابل ښار د اوبو ترمنځ د یوې کوچنۍ جزیرې په توگه پروت وو. یوه ورځ یوه شهزاده وغوښتل دغې جزیرې ته لاړ شي. دده په امر یې یوه زیاته اندازه و اښه په اوبو کې واچول چې له وښو څخه یو پل جوړ شي. وروسته شهزاده له پله څخه تیر شو او له هغه وخت وروسته عامه خلکو دغه ناحیه (کاه پل یا کاپل) بللی ده چې وروسته په کابل بدله شوه.

د کستگهم، کوبها په نظر د کابل نوم په پیل کې د کابل په سیند باندې

اطلاق کیده. دده د تحلیل له مخې کو KU اشکاني منشأ لري او د اوبو په مانا ده چې د زیاترو سیندونو د نامه په پیل کې راغلی دي. د مثال په ډول کونړ (کنړ). کورم (کرم)، کومل (گومل) او دغه شان نور چې د یونان او د لاتین د لرغونو تاریخ لیکونکو په لیکنو کې هم په همدې معنا راغلي دي. دغه راز کوئیس، کوفیس، کوایس. کله نا کله هم د کابل کلمه د کاول بدلیدونکې بڼه بلل شوې ده چې له کاو، کو او کاوه سره گډې جوړې لري چې ټول یې د ستر او پر تمین مانا لري. او د کوی کواتا (کیقباد) او کیخسرو په کلمو کې هم لیدل کیږي او د پوه، مشر، سرور او دستر مفهوم افاده کوي.

په همدې ترتیب په ایراني ژبو کې گاو او گاول دستر په مانا افاده شوي دي چې په ځینو جغرافیوي نومونو کې لیدل کیږي له دې امله د (ال) به جزء سره زابل، چنداول، کاول د مشرانو، سرورانو، او لاربښونکو مشرانو ځای او سیمه بلل شوې ده.

د پورتنیو څرگندونو له په پام کې نیولو سره د کابل کلمه په مشخص ډول په دغه ښکلي تاریخي ښار باندې ایښودل شوې او تر اوسه پورې په همدې نامه یادیږي.

## د کابل تاریخي لرلید:

لومړنی کابل او د هغه لرغوني ودانۍ په لومړیو پیړیو کې هماغه د آسمایي غره ختیځ خواته په ځوړو واکمن ختین کورونه وو چې کابل سیند ته نږدې او له طبیعي موقعیت او د اوبو له شته والي څخه په استفادې سره یې ډیر لومړني او زراعتي ټاټوبي جوړاوه، خو د کومې ناحیې او یا ولایت د مرکز په

توګه نه یادیده. کابل د سکندر کبیر د راتګ په وخت کې کوم ستر ښار نه وو که نه مقدوني فاتح هر و مرو په دغه ځای کې توقف کاوه. او که چیرې وداني یې هم لرله په هغه وخت کې د تګ راتګ له لارې څخه منحرف وو. د لرغوني کابل له موقعیت او د هغه له اساسي نښو نښانو څخه یوه هم د بودایي زمانې ودانۍ دي. بودایي کابل د چکړیو په پای منار کې جوړ شوي وو او اوس هم د خورد کابل په نوم یادیږي.

د چکریو د ښار د ستوپو او عبادت ځایو بقایاوې چې په حقیقت کې د بودایي قانون د عرادې ځلې دي هر یو یې په خپل ځای کې ښیي چې بودایي کابل د اوسني ښار د جنوب ختیځ په شپاړس کیلومتری واټن کې د یوه غره په لمن کې ودان شوی وو او له بالاحصار څخه د چکریو تر لمنې پورې ښاري ودانۍ موجودې وې او د چکړیو په ځلې برسیره په دغه ځای کې د سره منار په نامه یو بل ځلې هم موجود وو چې د زمانې په تیریدو سره دواړه ځلې و یجاړ او له منځه لاړل.

د چیني زایر هیوان تسنګ د ځرګندونو له مخې چې داوومې میلادي پیړۍ په لومړي نیمایي کې زموږ هیواد ته راغلی دی، معلومیږي چې په دې وخت کې د کابل پر ځای د کاپیسي یا بګرام ښار د واکمن سلطنت مرکزو چې تر ټکسیلا پورې یې پراختیا درلوده. دغه راز د هغو استحکاماتو له مخې چې لاتر اوسه پورې د دیوال او برج په بڼه د آسمایي دغره او د شیر دروازې د پاسه شته، په ډاګه کیږي چې په هماغې اوومه میلادي پیړۍ کې د هیوان تسنګ د راتګ په وخت کې کابل یعنې د سیند ګوتې د دواړو غاړو او د شیر دروازې او آسمایي دغرونو ترمنځ هماغې یوې تړتې ځمکې زیات سوق الجیشي ارزښت

درلود او دومره سیاسي او دفاعي ارزښت یې درلود چې په شاوخوا کې یې په دفاعي برجونو سره پلن، کلک او لوړ دیوالونه جوړ شوي وو. د کابل وروستي پاچاهان چې عربو هغه در تبیل په نامه یاد کړي دي د کابل هماغه برهمن شاهان وو چې له عربو سره په جګړه کې وو او له دیر شمو هجري کلونو څخه د یعقوب لیث صفاري د سلطنت تر زمانې پورې څه د پاسه دوه پیړۍ له عربو سره جنګېدل او اووه ځلي یې د کابل دفاع وکړه او عریان یې د کابل له شاوخوا سیمو څخه وشړل. په همدې وخت کې وو چې د کابل د ساحې د تمدن بنسټ کېښودل شو. لومړۍ له زراعتي پلوه وروسته د سوداګرۍ له مخې او بیا له سوق الجیشي پلوه د سلطنت د مرکز په توګه په یو سیاسي او تجارتي ښار بدل شو.

## کابل له اسلام څخه مخکې:

د دغه ښار تاریخ د سکندر د راتګ تروخته پورې په ښه توګه روښانه نه دی او له میلاد څخه مخکې په پنځمه پیړۍ کې د سیروس د فتوحاتو په وخت کې دده په واکمنۍ د اریوش (۵۱۰ - ۵۰۰ ق.م) کې د هرات له لارې افغانستان ته راو رسید له کابل څخه تیر شو او د خیبر درې له لارې هند ته لاړ او د هند لویدیځې سیمې یې ونیولې. کابل په خپل دغه حالت دوام درلود تر دې چې سکندر په ۳۲۸ میلادي کال کې له هندوکش څخه تیر شو او ماور النهر ته لاړ او له ستنیدو وروسته د کابل له لارې د خیبر درې په لور روان شو. پنجاب یې فتحه کړ او غوښتل یې چې د بلوچستان له لارې د بین النهرین په لور روان شي، خو په (۳۲۳ق.م) کې مړ شو.

به کابل کې وروستي یوناني پاچا هیرومایوس وچې له (۳۰ - ۲۰ ق.م) پورې یې په کابل کې حکومت کړې او د کوشانیانو له خوا له منځه لاړ.

## کابل د کوشانیانو په دوره کې:

په (۹۰ق.م) کلونو کې کوشاني قبیله رامنځته شوه، باکتریا یې ونیوله، ددغې قبیلې لومړنی پاچا کدفیزس (۴۰ یا ۵۰) میلادي کلونو کې سلطنت ته ورسید. باختر، پنجاب او کابل یې فتحه کړل. له هغه وروسته گاندوفرنس رامنځته شو. بیا دوهم کدفیزس پاچاهي ته ورسید او په (۱۱۰م) کال کې مړ شو. له هغه وروسته لومړی کانیشکا حکومت ته ورسید، ده په کندهار کې حکومت کاوه، کابل او باکتریا یې هم په واک کې لرل، وروسته په (۱۲۰-۱۵۰میلادی) کال کې دوهم کانیشکا او بیا اشوکا او ورپسې واسودیوا واکمن شول. کوشانیانو تر پنځمې میلادي پیړۍ پورې کابل په خپل واک کې درلود او همدغه کورنۍ وه چې د کابل بالاحصار او د شیر دروازی او آسمایې د غرونو د پاسه د یوالونه یې د عربو په وړاندې دیوه دفاعي د یوال په توگه جوړ کړل. کله چې کابل د هیاطله لاس ته ورغی، د شپږمې میلادي پیړۍ په منځنیو وختو کې د نوشیروان له خوا وشړل شو او کابل یې له اداري څخه ووت. له دغې پیښې وروسته د کوشاني دوهمه سلسله په کابل کې حکومت ته ورسیده چې تر (۸۸۰م) پورې چې له (۲۶۸ هجري لمریز کال) سره یې سمون درلود، د کابلستان د سلطنت د چارو واکې په لاس کې لرل. بالاحصار او بگرام یې دواړه د خپل حکومت د مرکز په توگه په لاس کې وو او په همدې وخت کې دی چې عربو په کابل باندې بریدونه پیل کړل.

## کابل د اسلام په وخت کې:

د حضرت عثمان (رض) د خلافت په وخت کې (۲۸-۳۲هـ.ق) د

عبدالرحمن بن سموره بن حبیب قریشي په مشرۍ د غزني له لارې په کابل برید وشو. په دې وخت کې کوشاني پاچا (اعراج) مقاومت ونشو کولی او تسلیم شو. ښځې او بچیان یې بندیان شول او په کال کې یې یو ملیون درهمه باج و مانه، فاتحان بیرته وګرځیدل او لږ شمیر په کابل کې پاتې شول. عبدالرحمن تمیم (رض) بن قیس او جبیر (رض) په کابل کې ؤ. په دې وخت کې جیپال حکومت ته ورسید، د باج له ورکولو څخه یې ډډه وکړه او حضرت تمیم او جبیر له یو شمیر اصحابو (رض) سره شهیدان شول.

بل ځل په (۶۹۸م) له (۷۹هـ) سره سم د عبدالملک مروان د خلافت په وخت کې د عبید الله بن ابوبکر صدیق (رض) په مشرۍ په کابل برید وشو او هغه ته رتبیل شاه سخته ماتې ورکړه. ورپسې په (۸۱هـ) کال (۷۰۰م) عبدالملک د عبدالرحمن بن اشعث په مشرۍ یو ستر لښکر کابل ته راولیږه. عبدالرحمن د غزني فتحې مشغول شو لیث بن قیس بن حضرت عباس (رض) یې کابل ته واستاوه. رتبیل خپل عسکر په شیر دروازه او آسمایی کې د لویو د یو الو تر شا، ځای په ځای کړل. هغوی د اسلام پر عسکر ویاندې برید وکړ، عبدالرحمن د غزني فتحې څخه وزګار شو او کابل ته راغی او دلیس له عکسرو سره یې یوځای په جګړه لاس پورې کړ، په نتیجه کې یې د د همزنګ په معبر کې د اوبو د تللو په برخه کې د یوال سوری کړ چې په پای کې کابل د عربو لاس ته ورغی. په دې جګړه کې حضرت لیث شهید شو او د عبدالرحمن له خوا په هغه ځای کې چې اوس یې شاه دوشمشیره (علیه الرحمه) بولي خاورو ته وسپارل شو.

عبدالرحمن د هندوانو تول بتان، عبادت ځایونه (درمسالونه) وران کړل

او یوازې یولوی درمسال یې چې د آسمایی دغره په لمن کې وه په خپل حال پرېښوده. برسېره پردې یې د شاه دوشمشیره (علیه الرحمه) د مقبرې په څنګ کې یو جومات هم جوړ کړ چې د بابرشاه د زوی نصرالدین همایون له خوا بیا جوړ او وروسته بیا د امیرامان الله خان د مور له خوا په اوسنی حالت بیا جوړ شو او د شاه دوشمشیره (علیه الرحمه) د جومات په نامه یې شهرت پیدا کړ.

دا هغه لومړی جومات دی چې په کابل کې د عربو مسلمانانو له خوا جوړ شوې دي، کله چې عبدالرحمن کابل پرېښود، رتبیل دوه ځلي کابل ونیو او دهشام اموی خلیفه تروخته په خپل حال پاتې شو. خو د هارون الرشید په وخت کې (۱۷۱هـ.ق) عباس له زیاتو لښکرو سره کابل فتحه کړ او په بیرته ګرځیدو کې بیا هم د کابل پاچا له اطاعت نه سرو غړاوه. په (۲۵۷هـ.ق) کال کې یعقوب لیث د عباسي پاچا په فرمان پــه کابل یرغــل وکـړ او رتبیل شاه سخته ماتي وخــوړه او مــاورالنــهر تـه وتــښتید او د صـــفاریانو لـه کمزورۍ وروستـه کـابل د برهمـا یـــیانو لاس تـه ورغـی، تـــردې چې په ۳٦٦هـ.ق د سبکتګین حکومت واکمن شو.

## کابل د مغلو په دوره کې:

د صفاریانو لـه انحطاط وروستـه کـابل د برهمـائیانـو لاس تـه ورغـی، وروستـه بـیاد غزنـی پاچـا پـه کـابـل واکـمن شو. د (٤٧ ٥هـ) پـه شـاوخوا کې سبکتګین، محمود غزنـوي او احغادو یې تر (٤٧ ٥هـ) پورې پـه کابل حکومت وکړ. عـلاوالدین غوري د غزنـویانو لړی ماته کړه. وروسـې غوریان پـه ٦١٢هـ.ق پـه کابـل واکـمن شـول، بـیا خـوارزمـشاهانو کـابل ونیـو او د خـوارز مشـاهـانو پـه

ماتې سره د چنګيز لښکرو په دې خاوره کې د وينو سيلاو روان کړ او ټول ښارونه او کلي يې وران کړل آن تر دې چې امير تيمور کورګاني کابل ونيو، وروسته بيا تيمور په (۸۰۰هـ،ق) د هند په لور لاړ او د تګ په وخت کې کابل ته راغی او په کابل کې تم شو. (۸۰۱هـ.ق) کې بيرته سمرقند ته لاړ او زوی يې مرزا غياث الدين کابل اداره کاوه. وروسته بيا ميرزا محمد او ورپسې شاهرخ د کابل اداره په لاس کې ونيوه تر څو چې له يوې مودې وروسته قدرت الغ بيګ ته ورسيد او په ۹۰۷هـ.ق کال په کابل کې مړ شو. د الغ بيګ د بې کفايتۍ له امله د محمد مقيم امير ذوالنون په نامه يوه شخص کابل ونيو.

ظهيرالدين بابر دغه پيښه ونه زغملای شوه او په ۹۱۰هـ.ق کال کې يې کابل ونيو او په دې ښار کې يې سکه هم ووهل شوه. کله چې بابر په کابل کې ؤ د بابر ښکلې بڼ يې جوړ کړ او له کابل سره يې خاصه مينه درلوده.

کله چې بابر هند ته لاړ، کابل دده د يوې حکومتي صوبې په توګه اداره کيده. په کابل کې د مغلو وروستی والي نصيرخان نوميده چې د نادرشاه افشار له خوا له منځه يوړل شو. نادرشاه افشار د هندوکش له لارې په کابل او د کابل په بالاحصار بريد وکړ (۱۱۵۷هـ.ق) او يوه موده کابل د نادر افشار د واليانو تر لاس لاندې و.

## کابل د احمد شاه دراني او تيمور شاه په وخت کې:

احمد شاه دراني په ۱۱۶۰هـ.ق کال چې له (۱۷٤۷م کال) سره سمون خوري، د خلکو له خوا په پاچاهي وګومارل شو، څو تر يوې مودې پورې يې د کابل ولايت نصيرخان ته پرېښود. ورپسې نصيرخان بغاوت وکړ او احمدشاه

بابا د (۱۱۶۰) کال په پای کې هغه ونیو او نصیرخان یې له هیواده وشاړه. احمد شاه بابا غوښتل کابل د حکومت مرکز کړي، له دې امله یې په ۱۱۶۶ هـ.ق کال د کابل ښار په شاو خوایی د یوه لوی دیوال د جوړولو امر وکړ چې دده د سپه سالار سردار جانخان په هڅو جوړ شو. دغه دیوال یو ولس پوړی لرلې او د کابل په ښار کې په دې ډول بیلا بیلې دروازې وې:

په د همزنګ کې د کندهاریانو دروازه

د سلام خانی په برخه کې سپینه دروازه

د عیدګاه د جومات ترشاد پیت دروازه

د ګذرګاه دروازه

د بالاحصار په برخه کې لاهوری دروازه

د احمد شاه بابا له وفات وروسته دده زوی تیمورشاه په (۱۱۸۶هـ-۱۷۷۳م) کال کې پاچاهي ته ورسید او په (۱۱۹۰هـ-۱۷۷۶م) کال کې یې کابل په رسمي ډول د سلطنت مرکز کړ چې تراوسه د افغانستان د پایتخت په توګه پیژندل کیږي. له تیمورشاه وروسته د هغه زوی زمانشاه په کابل کې پاچا شو. خود خپل ورور شاه محمود له خوا ړوند کړی شو. د تیمور شاه زامنو د بی اتفاقی له امله دابدالي ټینګ سلطنت کمزوري کړ او انګلیسانو ته یې د لاس وهنې او تیري زمینه برابره کړه. شاه شجاع له انګلیسانو سره په تماس کې و او په کندهار کې په تخت کښیناست. کله چې دوست محمد خان بامیانو ته لاړ، شاه شجاع په (۱۲۵۵هـ.ق) کابل ته راغی، خو د وزیر مخمد اکبر خان له خوا له مینځه یوړل شو. د انګلیسانو چوڼۍ او هغه کلاګانې چې د بالاحصار او شیرپور ترمنځ وې، وزیر محمد اکبر خان ونیولې او

په هغې غونډه کې چې د مفاهمې له پاره جوړه شوې وه، جنرال مکناټن او دوه نور انګریزان د وزیر محمد اکبرخان په لاس ووژل شول. په نتیجه کې انګلیسان له کابل او افغانستان څخه ووتل او د انګلیس له اووه لس زرو عسکرو څخه یوازې یو تن د داکتر براېډن په نامه خپل ځان روغ رمټ وویست او نور د جلال آباد دوربینمو په تنګی کې ووژل شول. له هغه وروسته د (۱۸۴۲م کال) په اپریل کې شاه شجاع هم ووژل شو او امیر دوست محمد خان په تخت کښیناست.

د انګلیسانو دویم یرغل د شیرعلیخان په وخت کې وشو، شیرعلیخان د مزار په لوری لاړ چې له روسانو څخه مرسته وغواړي، خو وفات شو او محمد یعقوب خان پاچاهي ته ورسید. له بده مرغه هغه هم د انګلیسانو تراغیزې او د هغوی تر پرله پسې فشار لاندې راغی او د انګلیسانو د ویستلو په خاطر یې د ګندمک کرغیړن تړون ته غاړه کیښوده، کیوناري یې دربار ته ومانه تردې چې د (۱۸۷۹م کال) په اګست کې د کابل خلکو د کیوناري او یعقوب خان پرخلاف یوه عامه بلوا او لانجه جوړه کړه. په نتیجه کې یې کیوناري د کابل په بالاحصار کې ووژل شو او دفتر ته یې اور ورواچاوه. یعقوب خان چې د انګلیس د عسکرو هرکلي ته لاړ د رابرتس له خوا بندي شو او هندوستان ته ولیږل شو. رابرتس کابل ونیو، د کابل چارچته یې وسوزوله، بالاحصار یې ړنګ کړ او یو شمیر افغاني افسران او عسکر یې شهیدان کړل.

دوهم ځل د کابل، لوګر، کوهدامن او وردګو خلک د انګلیسانو په مقابل کې یو موټي شول، خو انګلیسانو د افغانانو په مقابل کې د بې اتفاقۍ اچولو له سیاست څخه کار واخیست، هماغه ؤ چې عبدالرحمن (د روسیې له

قلمرو ) له تاشکند څخه افغانستان ته راغی او د چاریکارو له لارې کابل ته راورسید او په (۱۲۹۷ م کال) کې یې پاچاهي اعلان کړه، هغه تر زیاتې اندازې د انگلیسانو تراغیزې لاندې ؤ او په ۱۸۹۳ م کال د ډیورنډ تړون لاسلیک کړ او انگلیسي پوځ له کابل څخه ووت، له عبدالرحمن نه وروسته د هغه زوی حبیب الله خان پاچاهی ته ورسید. هغه هم په (۱۹۱۹ م کال) په کله گوش کې ووژل شو. امیر امان الله خان په تخت کښیناست او د افغانستان خپلواکي یې ترلاسه کړه او تر (۱۹۲۹ م) کال پورې یې حکومت وکړ. د عبدالرحمن په وخت کې د کابل ارگ، باغ بالا ماڼۍ، د شهر ارابن او د شهرارابرج جوړ شول، امیر حبیب الله خان د مهتاب قلا بڼ او د حبیبې ښوونځی جوړ کړل.

د محمد زایانو په دوره کې (د حبیب الله کلکاني د دورې له یوه لنډ څنډ وروسته) د پوهنې پرمختیا او ښاري ودانیو جوړول پیل شول چې لړ یې محمد نادرشاه او زیات یې د اعلیحضرت محمد ظاهرشاه په وخت کې او وروسته د محمد داؤد د جمهوریت په دوره کې ترسره شول، خو له (۱۳۵۷ هـ.ش) کال وروسته او بیا له (۱۳۷۱ هـ.ش) کال وروسته په کابل کې د عمراني او عرفاني کار گډوډي پیل کیږي. په دغو دوه نیمو وروستیو لسیزو کې په تیره بیا د طالبانو په دوره کې کابل په یوه غلي، گوښه شوي (منزوي) او وران ښار بدل شو.

# د کابل تاریخي ځایونه

که واقعیت ته وگورو د کابل په ښارکې هرگام د لرغوني تاریخ یوه نښه نښانه ده چې په لنډ ډول یې بیا نوو:

## د کابل بالاحصار:

دغه تاریخي او دفاعي کلا د کابلشاهانو په وخت کې د زمردو د غونډۍ پرسر جوړه شوه او د هغې د دیوال په اوږدو کې د برج په بڼه لوی استحکامونه جوړ شول.

د هارتن د پله په پنځه سوه مترۍ کې همدا اوس له دیوال سره متصل یو دفاعي برج لیدل کیږي. بل برج د توپ له غونډۍ نه لږ پورته او د شیر دروازې د غره په څوکه، بل لوی برج چې د زنبورک شاه په تخت هم شهرت لري، د (۲۲۱۸۵) مترو په لوړوالي جوړ شوی دی. په همدې توگه د آسمایي په ختیځ څوړې کې یو بل تینگ برج موجود و چې یو یې په کاسه برج مشهور دی او زیات پنډوالی (قطر) لري، خو د آسمایي پاسنی د یوالونه له منځته تللي، یوازې د تیږوبنستونه (تهدابونه) یې په ځینو ځایو کې لیدل کیږي. ددې د یوالونو ختیه د آسمایي له جنوبي گلکنې څخه اخیستل کیدله، لومړی د فیلانو په واسطه پخیدله، وروسته د بیگار او حشر په توگه خلک کار ته مجبوریدل، خلک د دیوال په اوږدوالي دریدل او ختیه به یې له یوه لاسه بل ته اچوله چې د یوولس پسخو (مهرو) په لوړوالي او یو متر او (۲۰) سانتي په سوري یو دیوال جوړ کړ. هغو کارگرانو ته چې بې پروایي یې کوله سخته سزا ورکول کیده. په

برجونو کې دډزو په خاطر تیرکښونه موجود وه او د دیوالونو په هره برخه کې هم تیرکښونه ایستل شوي وو، برجونو د ترصد د نقطې او د قوماندې د محل حیثیت درلود.

رتبیل شاه د کوشاني حکومت په دفاع کې له دې برجونو څخه اعظمي استفاده کوله، خو د هغه د حکومت په وروستیو وختو کې دا دیوال د گذرگاه د معبر په برخه کې سوري شو. دغه دیوال اوسنی هارتن پله ته مخامخ پیل، د شیر دروازې د غره په ارتفاعاتو د هغه ځوکې ته رسیږي. د نوموړې ځوکې له جنوب څخه له تیریدو وروسته له دویمې ځوکې څخه اوړي او د ختیځ لورته ځان برابروي اوله ښکتنۍ او ختیځې ځوکې سره چې د عاشقانو او عارفانو په استقامت پرته ده یوځای کیږي او په دې ترتیب د بالاحصار خواته غځیږي ترهغو چې د شیر دروازې د یوه کوچنی معبر څخه چې د شهدای صالحین خواته خلاصیږي بیرته د بالاحصار د غونډۍ په لور استقامت اختیاروي، چې بالاحصار ته یو بشپړ دفاعي حیثیت وربښي. بالاحصار چې لوړ او ټینګ برجونه پکې جوړشوي د کابلشاهانو لویه نظامي او دفاعي کلا وه.

د بالاحصار په جنوب کې یولوی خندق کیندل شوی و، چې له اوبو ډ ک او د خلکو تګ راتګ یې له ستونزو سره مخامخ کړی و. متأسفانه د آسمایی دیوالونه د پیښوله امله له منځه تللي، یوازې د ده افغانانو سرته د هغه یوڅه نښې نښانې ترسترګو کیږي. په دې ترتیب دې تاریخي دېوالونه چې د کابلشاهانو په زمانه کې آباد شوي وو، د کابل په دفاع کې ښکاره ونډه درلوده چې په هغه کې د کوشانیانو رول ډیر څرګند او ډیر ارزښمن دي.

دا دیوالونه باید د یوه لوی فرهنګي میراث په توګه وساتل شي او له

زيات تخريب او ورانيدو څخه يې سخت مخنيوی وشي، ځکه چې د توريزم په برخه کې د يوې تاريخي ودانۍ په توګه تاريخي او توريستيکي ارزښت لري. د ګرځندوی رياست او د لرغون پوهنې مرکز په دې برخه کې لويه فرهنګي دنده لري چې د هغې د ساتنې او زياتې پيژندنې او شهرت په منظور پاملفتونه او ځانګړې خپرونې ولري.

## د بالاحصار او بګرام اړيکې:

د کابلشاهانو په وخت کې بالاحصار او بګرام دواړه د کوشانيانو د مرکز په حيث ګڼل کيدل. له بالاحصارنه د شمال خوا ته د بالاحصار له اوسنی سرک، محمودخان پله سره منطبق، د بی بی مهرو په استقامت او له هغه ځايه د قلای حاجی او يا پايمنار د دښتې په استقامت او بيرته د بګرام په لوريو پراخه او مستقيم په تيږو فرش سرک موجود و چې بالاحصار او بګرام کاپيسی يې سره يوځای کول. د سرک دواړو خوا ووته جګې ونې وې چې د کابلشاهانو نظامي سپرو به له بالاحصاره تربګرامه ددغو ونوترسيوري لاندې له يو نيم تر دوو ساعتونو مزل کاوه. دوخت په تيريدو دا سرک له منځه لاړ، خونښې نښانې يې پاتې دي چې د تاريخ په پاڼو کې ددغو سيمو د ښکلا، تازه ګي او نورو او صافو په باب په تفصيل سره خبرې شوې دي. بالاحصار چې د خپل دفاعي اهميت له امله کوم عظمت او ښکلا درلوده، بګرام په اواره ځمکه کې د بود ايانو يوستر سياسي او مذهبي مرکز ؤ، اصلاً د (بګ + رام) کلمې له هندي کلمو څخه مشتقې شوی چې د لوی او سپيڅلي مذهبی ښارمانا لري دغه وييونه (لغات) د بګرام په کلمه کې هم تطبيقولی شو، ځکه له بالاحصار تربګراميو او د چکريو تر مناره تړول بودايی معبدونه او د هغو زيارتځايونه موجود وو.

## په بالاحصار کې درې مهمې تاریخي ودانۍ:

۱- شاهي هستوګنځي چې امیر دوست محمد خان هغه په (۱۸۳۵م) کې ودان کړ. په زړه پورې کاشي کاري او انځورګري یې درلوده او په (۱۸٤۰م) کې د انګلیس سفیر په هغه کې اوسیده.

۲- د شاهي مسجد خرابه چې د عالمګیر په زمانه کې جوړ شوی و.

۳- شاهي حرمسرای چې په (۱۸٤۰م) کې شاه شجاع په کې هستوګنه لرله.

دغه ښکلې، ښایسته او له عظمته ډکې ودانۍ په وروستیو کورنیو جګړو کې بیخي ړنګې او له منځه لاړې. دا ودانۍ په بالاحصار کې د ننه د سلو مترو په واټن یوه له بلې څخه لرې پرتې وې.

٤- دربارخانه: د بالاحصار په ښکتنۍ برخه کې د برتانیې د سفیر د هستوګنځي ترڅنګ یوه چار دیوالي وه چې دربار خانه او حرمسرای پکې واقع وو. د بالاحصار د دروازې پورتنۍ برخه د شاهي موزیک د ډلې لپاره ځانګړې شوې وه او د سلطنتي تشریفاتو مهم جز ګڼل کیده، له دې دروازې نه د علیمردان باغ ته لاره تللې وه چې بالاحصار یې له زاړه ښار سره نښلاوه.

## د بلخ خاورینه غونډۍ:

دغه خاورینه غونډۍ اصلاً مصنوعي تپه ده چې د بالاحصار په ختیځ کې د شاه شهید (علیه الرحمه) په سیمې پورې مربوطه ده او په شا وخوا کې یې ښاري کورونه ودان شوي دي. وایي چې د بلخ د پاچا او د کابل د پاچا ترمنځ جګړه پیښه شوه په نتیجه کې بلخ فتحه شو او د کابل د شاه په امر لاړښوونه وشوه چې فاتح عسکر دې یوه یوه کڅوړه خاوره له بلخ څخه واخلي او له ځان

سره دې کابل ته راوړي او په همدې ځای کې دې ډېرې کړي، دې ځای ته دومره خاورې انتقال شوې چې يوه خاورينه غونډۍ ترې جوړه شوه او د بلخ د خاورې په غونډۍ يې شهرت وموند. دا غونډۍ په مستقيمه توګه د کابلشاهانو د عظمت ثرګندويې کوي.

## د مرنجان غونډۍ:

دغه غونډۍ د بالاحصار د ختيځ په درې کيلو مترۍ کې د حضوري چمن او د رحمن مينې او سيد نور محمد شاه مينې، يک لنګه کوتل اولو مړی مکروريان ترمنځ پرته ده. ددې غونډۍ په جنوب کې سياه سنګ پروت دی چې په پخوانيو وختو کې د نوروز ميله (جبه) په دې ځای کې کيدله. د هغې د تسميې دوجهې په باره کې ويل شوي چې مرنجان يو جادوګرسړی و چې زيات ثروت او پيسې يې درلودې، څنګه چې د هغه طلسم مات شو، د هغه افسانوي شته (دارايې) د خاورو په غونډۍ بدل شول او دا غونډۍ د هغه په نام یاده شوه. لرغونپوهانو په دې غونډۍ کې زياتې څېړنې او کيندنې وکړې، اوله دې غونډۍ څخه يې له سپينو زرو څخه د جوړو شوو سکوډ کې ختيينې کتبوې ترلاسه کړې، چې له دې سکو څخه د ځينو وزن له پنځو ګرامو څخه زيات و. په يوناني دورې پورې يې اړه درلوده چې د پنځمې او شپږمې ميلادی پيړۍ په شاوخوا کې جوړې شوې دي. دسکې په يو مخ کې د کونګ څيره او په بل مخ کې يې د تفکر او انديښنې درب النوع زوس دلور تصوير چې د آتن د ښار د ساتونکي په ډول تلقي کيده ايستل شوی و او کيدای شي چې د مقدوني سکندر په زمانه کې د مديترانې له څنډو څخه کابل ته رارسيدلی وي.

د ۱۹۳۳م کال د جون په مياشت (د ۱۳۱۲ هـ ش جوزا) د مرنجان د

غونډۍ په دوو نقطو کې دوه يووالي عبارت ځايونه و موندل (کشف) شول، چې د کوشانيانو په وخت کې جوړ شوي وو. همدارنګه له همدې غونډۍ څخه د بودا ستره مجسمه (اتوا) هم کشف شوه چې د جسامت او هنر له مخې د کابل موزيم ستره مجسمه وه. برسيره پردې په سلګونو د سرو او سپينو زرو سکې هم له همدې غونډۍ څخه لاس ته راغلې وې چې د کابلشاهانو په عصر کې د بوديزم د ستر مرکز څرګندويي کوي.

## خير خانه:

د خيرخانې غاښې د کابل د شمال لويديځ په ١٦ کيلومترۍ کې پروت دی له اسلام څخه د مخه پيړيو کې ددې کوتل په ګاونډ کې د سوريا ياد لمر د نمانځنې معبد موجودوو او د برهمنيانو لومړنۍ عبادت ځای وو. له دې سيمې څخه يوه ډيره ښکلې مجسمه چې د لمرب النوع ده د هغې له مصاحبانو سره ترلاسه شوي ده.

د لمر د رب النوع نوم (هورياخور) ويدايې او اوستايي سندرو کې په مفصله توګه راغلي دي. د (خور) د کلمې په اړه ويلی شو چې ددې سيمې نوم اساساً (خورخانه) و او د وخت په تيريدو د خير خانه په بڼه اوښتی دی، له دې امله زيات تاريخي ارزښت لري.

## د بابربڼ:

دا باغ د شير دروازې د غره په لويديځه لمن کې واقع دی او د مغول بابر شاه د آثارو له پاتې شونو څخه دی چې په (١٥١٤م) کې يې د کابل ښار له

فتحې وروسته دغه ښار خپل پایتخت کړ او وروسته یې د دغه باغ چې د
چاردهی په ټوله حوزه یې حاکمیت درلود بنسټ کیښود ، له لرې او نږدې سیمو
څخه یې ډول ډول نیالګي دې ځای ته راوړل او نهال یې کړل. دغه باغ مغولي
شاهي کورنۍ د غړو لپاره یو ښکلی تفریح ځای و. وروسته بابر هندونیو او
کابل یې پرېښود خود کابل ښکلې هوا او میوې یې نه هیرولې. کله چې بابر
مړشو د هغه له وصیت سره سم یې په همدې بڼ کې خاوروته وسپاره ، د هغه
لمسي نورالدین محمد جهانګیر په (١٦٠٧م) کې د هغه د قبر لپاسه یوه ښکلې
مانۍ جوړه کړه او له هغه را ښکته په (١٦٤٦م) کال کې د هغه لمسی
نورجهاني د بلـخ او بدخشان د فتحې په مناسبت یو جومات جوړ کړ چې د دې
باغ اهمیت او لوړتیا یې لا پسې زیاته کړه. متأسفانه د وروستیو دوه نیمو
لسیزو په جګړو کې د غه باغ خپله ښکلا او تازه ګي له لاسه ورکړې ده او بیا
رغونې ته اړتیا لري.

## شیر پور:

د دې لپاره چې په ښار کې د دولت عسکر او لښکرې د خلکو د مزاحمت
او ځورونې سبب نشي ، امیر شیر علیخان پریکړه وکړه چې د بي بي مهرو د
غونډۍ په شاوخوا د شیر پور په نامه یو ټینګ پوځي ښار ودان کړي.

نو ځکه یې په (١٨٧٠م) کې د مهندسانو په واسطه د دې ښار نقشه
برابره او د عمل ډګر ته یې وړاندې کړه. دغه ښار د بي بي مهرو د غونډۍ په شاو
خوا کې په (٢٠٠٠) جریبه ځمکه کې طرحریزي شو ، د دیوالونو لوړوالی
یې ٢٠ فوټه او سورېې د دې استعداد لري چې توپ پرې ګرځیدای شي. ختیه یې

د فیلانو په واسطه پخیدله. په دې ښار کې یوه پوځی قشله چې د کتنې ور ګنجایش ولري په نظر کې نیول شوې ده.

له پنځو کالو څخه د زیاتې مودې لپاره دورځې (٦٠٠٠) کارګران او نږدې یو زر معماران او ترکاڼان په دې ودانۍ کې په کار بوخت وو. عسکرو ته پر اصلي معاش برسیره د میاشتې پنځه روپۍ هم ورکول کیدې، څو خپلو ورځنیو چارو ته پاملرنه ولري، خو د معمارانو اجوره هره ورځ په نقده توګه د دولت له خزانې څخه ورکول کیده. په داسې حال کې چې پخوا د سړکونو، لارو او ودانیو جوړول جبري وو او د بیګار به ډول په یې خلک راټولول او دغه کار به زیاتره په عامو خلکو او بزګرانو کیده او تحمیلي بڼه یې درلوده.

تراوسه لا ښارنه و ودان شوي او ختیځ او لویدیځ د یوالونه یې لا نه وو بشپړ شوي چې د افغان او انګلیس دویم جنګ پیل شو او د غه پوځي ښار نیمګړی پاتې شو، چې وروسته دوخت په تیریدو ړنګ شو.

دې پوځي ښار په یوه ګوښه کې جنګي کلا (قعلۀ جنګي) آباده شوه، وروسته د اعلیحضرت محمدظاهرشاه د حکومت په دوران کې د شیرپور دلویې عسکري قشلې په منځ کې ودانۍ جوړې شوې چې تریوې اندازې د عسکرو د ځای په ځای کولو محل ګڼل کیده او همدارنګه عسکري لوژستیک او داردو روغتون هم په کې ځای په ځای شول.

## شهر آرا:

د شهر آرا برج او د شهر آرا بڼ د برکي پر غونډۍ چې اوس د شهر آرا غونډۍ په نامه یادیږي، واقع دي. دغه غونډۍ پخوا د تپۀ ماران په نامه یادیدله.

کله چې عبدالرحمن خان کابل ته راغی د دې غونډۍ پر سر یې په (۱۸۹۳م) کې له انگریزانو سره د ډیورنډ تړون لاسلیک کړ چې د هغه په اساس انگریزان له افغانستان څخه ووتل. وروسته عبدالرحمن خان د دې غونډۍ لپاسه د یوه تعمیر بنسټ کېښود چې په خواکې یې د شهرآرا د برج په نامه د یوه برج بنسټ هم کېښود او په شاوخوا کې یې یولوی باغ جوړ شو. چې د یو څه وخت لپاره د امان الله خان د وخت حربي ښوونځی هم په شهرآرا کې ځای په ځای شوی و. د وخت په تیریدو سره وروړو د شهر آرا باغ د خلکو تفریح ځای و گرځید او د محمد ظاهر شاه د حکومت په وخت کې د دې باغ یوه برخه په (باغ زنانه) بدله شوه چې متأسفانه اوس متروک او خپل لومړنی اهمیت یې له لاسه ورکړی دی.

## باغ بالا:

هغه باغ دی چې د اوسني پولي تخنیک او پروان میني ترمنځ غونډۍ باندې واقع او لویدیځ ته یې انترکانتیننتل هوټل پروت دی او د امیر عبدالرحمن خان په زمانه کې د یوه باغ په بڼه رامنځته شو (۱۸۸٤م) او د باغ بالا په نامه ونومول شو.

په دې غونډۍ باندې یوه کوچنۍ ښکلې ماڼۍ او یو د لمبلو ډنډ هم جوړ شو. نوموړې ودانۍ د امیر عبدالرحمن خان د دربار ځای و. د باغ بالا له قصر نه د انگلستان سفارت ته هم ترڅمکې لاندې یوه لار ایستل شوې وه چې د اړتیا په صورت کې یې د انگلستان د سفارت او د باغ بالا ماڼۍ ترمنځ تگ راتگ شونې کاوه. د باغ بالا په جنوبي برخه کې د پیر بلند په نامه یو مزار شته چې څنگ ته یې یوه زړه کلا موجوده وه او د کافر قلا په نامه یادیدله. د دې

کلا په شمال کې د ترصد یوه برج بنسټ هم ایښودل شوی و چې د چهاردهي، خیرخانې او وزیر آباد د سیمو، کلای جنگي او بی بی مهرو پرلارو باندې یوه حاکمه او څارنیزه (کنترولي) نقطه وه او همداوس هم په خپل حال پاتې ده.

باغ بالا د پرله پسې پېښو له امله خپل لومړنی اهمیت له لاسه ورکړ. وروسته د محمد ظاهر شاه د حکومت په دوران کې دغه باغ بیا سمسور کړای شو او پریمانه او به ورته برابرې شوې، زیات تاکونه پکې کینول شول او ماڼۍ یې هم ترمیم شوه خو په وروستیو دوه نیمو لسیزو کې یې بیرته خپله تازه گی او سمسور تیا له لاس ورکړه، زیاتره تاکونه یې وچ شول او د سړک د غاړو زیاتره ونې یې له منځه تللې دي.

## د چهلستون ماڼۍ:

د چهلستون ماڼۍ د دارالامان په ختیځ او د چهلستون د غره په لویدیځو لمنو کې د شاه زمان په دوره کې ودانه شوه چې د چهاردهی بهترینه سیمه یې چې خاصه ښکلا لري په دې منظور انتخاب کړې ده. لږ پورته د چهلستون د غره په لمن کې یو وړو کی ځلی هم شته چې په پخوانیووختو کې ودان شوی و، اما د شاه زمان له خوا دوباره ترمیم شو. امکان لري چې دغه سیمه او ځلی د کابلشاهانو پر وخت د بودیزم یونامتو کلی وو.

د چهلستون ماڼۍ د یوه ښکلي اوشنه باغ په منځ کې واقع وه چې دوروستیو جگړو په نتیجه کې په بشپړه توگه ویجاړه شوې ده.

## د دارالامان ماڼۍ:

د دارالامان ماڼۍ د چهاردهي په یوه ښیرازه سیمه کې د قوروغ د غره

ختیځ لورته له (۱۹۲۲م) را په دیخوا ، د امیرامان الله خان له خوا جوړه شوې ده چې سرمهندس یې مستر هارتن نومیده . د دارالامان د ماڼۍ په جوړولو کې د هغه د ښو خدمتونو درناوي په منظور د گذرگاه پول د ده په نامه (دهارتن پول) یاد شو. امان الله خان د پارلمان په خاطر د دارالامان د ماڼۍ بنسټ کیښود چې په بیضوي خونه کې یې له (۴۰۰) څخه زیات کسان ځاییدل.

دې ماڼۍ څلور تینگ او کلک برجونه درلودل او په څو پوړیز ډول جوړه شوه چې تعمیراتي مواد یې پخې خښتې، گچ او سمټ وو، د تعمیراتی موادو او کارگرانو د لیږدولو په منظور له د همزنگ نه تر دارالامانه د ریل کرښه تر کار لاندې ونیول شوه. د دې ماڼۍ بام د مسو په واسطه پوښل شوې ؤ. او په مناسبو ځایو کې دالوتونکو تصویرونه هم انځور شوي وو. د دارالامان واټ ډیر پلن او دواړو خاووته یې پراخې پلې لارې هم درلودې، د سړک دواړو خواووته په دوه کتاره توگه ونې کرل شوې وې چې ټول پلې لارویان د لمرله وړانگو څخه خوندي پاتې کیدل متأسفانه چې هغه ټوله ښکلا او تازه گي د جگړو له امله په بشپړه توگه له منځه تللې دي.

## د تاج ببگ د غونډۍ ماڼۍ:

دغه ښکلې ماڼۍ د دارالامان په لویدیځ کې د قوروغ د غره په شمالي څوړو کې ودانه شوې ده، چې په ډیر عالي ډیزاین او ساختمان په دوه پوړیزه توگه یې د دارالامان له قصر سره په یوه مهال بنسټ ایښودل شوی او آباده شوې ده . دا دواړه محلونه د کابل د خلکو تفریح ځایونه وو او امان الله خان په دې ځای کې یونوی ښار په پام کې درلود ، خو د اهیله یې ترسره نشوه.

دریم څپرکی

# د کابل د ښار لرغونی نقشه

د نړۍ په ټولو ښارونو کې د ښار پلان او نقشه د ځمکو (اراضی) د جوړښت له مخې ترتیب او اوډل کیږي. په همدې اساس د کابل ښار لرغونې او اوسنۍ نقشې په شکل او ډیزاین کې د شیر دروازی د غره، د آسمایې غره او د کابل سیند رول تیاکونکی دی. (۳۵۰۰) کاله پخوا هم همدغه عوامل د کابل د زاړه ښار له اغیزمنو فکتورونو څخه ګڼل کیدل. د آسمایی غره مخ په لمر ځوړې د لاندینیو پدیدو په ملتیاد لرغوني کابل منشأ جوړوي:

د ځمکو (اراضی )جوړښت:

یونانیانو د ښار د دفاع په منظور جګې غونډۍ (اکروپل) کارولې. کابل د یوې لوړې سیمې (دور دهستانا) یا جګ ښار (اورسپانا) په توګه په همدې منظور د کابلشاهانو ښاري مرکزو، چې له همدې امله له خورد کابل څخه بالاحصار ته ولیږدول شو، په دې اساس په لومړۍ اسلامي پیړۍ کې کابل هغه ښار و چې ټینګه او مستحکمه کلایی درلوده او هغه یې د (ګرزندېن) په نامه یادوله او دې جګې کلا ته رسیدل ستونزمن کاروو، د حاکمو نقطو موجودیت او له لوړو نقطو څخه ترصد، پردې (ښار) تسلط ناممکن کړی و.

## د هایدروګرافي عامل:

د کابل سیند چې (کوفن) یې یادونه کړې ددې سیمې د ښیرازۍ او سمسورتیا سبب وو، دللندر له سیند څخه وروسته له نهر درسن څخه استفاده کېدله، جوی شیر بله ویاله وه چې د سیمې په ښیرازۍ کې یې سېده اغېزه درلوده چې په هغه وخت کې یې د خلکو اړتیاوو د پوره کولو او خړوبولو لپاره په ښه توګه کفایت کاوه.

## ستراتیژیکي نقش:

کابل د موقعیت له مخې د دښمن د بریدونو په وړاندې د یوه ټینګ او مقاوم سپر په توګه پېژندل کېده، نو ځکه په دفاعي لحاظ د ښار شا او خوا ته د دیوالونو د شته والی او د غرونو د لوړو څو کو یادونې په تفصیل سره شوې دي. په اکبر نامه او تزک جهانګیري کې د ا موضوع په دې توګه توضیح شوې ده: «هغه غر چې پر هغه باندې د بالاحصار د ارګ بنسټ ایښودل شوی، هغه ته د شاه کابل وایي، چې پرسریې عقابان وو او د کابل ښار دوه ختیځنې کلاګانې درلودې او د بالاحصار ارګ یوه ځانګړې کلا وه.» ددې ښار کلا د بابر زوی میرزا کامران ترمیم کړه. جهانګیر د (۱۰۳۷-۱۰۴۷ هـ.ق) په حدود و کې د هغه په ودانیو کې د پام وړ بدلونو نه راوستل او ځان ته یې ځانګړی ځای جوړ کړ، د بالاحصار کلا چې له خامو مواد و څخه جوړه شوې وه د شاه جهان په امر (۱۰۵٤ هـ.ق) له ګچ او چونې څخه جوړه شوه او متعددې دروازې یې درلودې، چې د کابل د دیوالونو په برخه کې یې یادونه شوې ده.

## تجارتي نقش:

کابل د ختیځ، لویدیځ، شمال او جنوب په یوه تجارتي څلور لارې کې پروت دی. اچ اچ ویلسن په آریانا انتیکا نومی کتاب کې داسې لیکي:

«او رتهسپانم درې ترافیکي لارې لري چې له لویدیځ، ختیځ او جنوب څخه راغلی او په اور تهسپانم کې سره یوځای کیږي.» خو سترابن لیکي: «دا سړ کونه درې نه بلکې لویه تجارتي څلور لارې ده چې د باکتریا، او اراکوزیا او د هند خواته ځي او د آسیا له لویو تجارتي لارو څخه ګڼل کیږي. بابر داسې لیکلي دي: «د هندوستان او خراسان ترمنځ د وچې له لارې دوه بندرونه دي: یو کابل او بل کندهار. کاروانونه له فرغانې او ترکستان، سمرقند او بخارا، بلخ او له حصار بدخشان څخه کابل ته راځي. د خراسان او هندوستان ترمنځ همدغه ولایت واسطه دی. سوداګران روم او ختا ته ځي او هر کال اووه اته زره آسونه کابل ته راځي. له هندوستان څخه له پنځلس نه تر شل زرو کورونو په کاروان کې کابل ته راځي. د خراسان، روم او چین مالونه په کابل کې پیدا کیږي.» ځکه چې کابل له ډیرو پخوانیو وختو څخه د وریښمو له لارې سره د ارتباط پر اساس عالي تجارتي ماهیت درلود.

## مذهبي نقش:

د عربو له راتګ او د اسلام د سپیڅلي دین له خپریدو سره سم په کابل کې اسلامي او مذهبي سپیڅلي مرکزونه او زیات شمیر جوماتونه جوړ شول. کابل ته د یوه مرکزیت دور په برخه کولو په لار کې د شاه دوشمشیره (علیه

الرحمه)، عاشقان او عارفان (علیه الرحمه) او شهدای صالحین (علیه الرحمه) زیارتونو مهم او ټاکونکی رول درلود. خو له اسلام څخه د مخه د بودایی دین له نقطه نظره په کابل کې ډیر بودایی عبادت ځایونه موجود وو. د کابل په بالاحصار کې د زمرد پرغونډۍ یو کوچنی بودایي معبد موجود ؤ. په شیوه کیو، بګرامیو، دامان شاخ برنتۍ، د مرنجان په غونډۍ، په تپۀ سلام او د خیرخانې په کوتل کې یو شمیر بودایي عبادت ځایونه او زیارتونه وجود درلود.

د حدود العالم مؤلف داسې لیکي: «کابل هغه ښار ګوتی دی چې ټینګه او مضبوطه کلا لري، مسلمانا ن او هندوان پکې دي، بتخانې پکې دي، او رای قنوج تر هغو بشپړ واک ته نه شي رسیدای، څو چې د دغو بتخانو زیارت ونه کړي او د ملک بیرغ یې همدلته زړوي.»

دا موضوع د ملیونونو هندي زیارت کوونکو د تګ راتګ سبب ګرځید له او د کابل مذهبي نقش یې روښانه او ښکاره کاوه.

## د کابل ښاري شبکه:

که چیرې د لرغوی کابل جوړښت (ساختمان) ته وکتل شي، د هغه وخت کابل غیر منظم پلان درلود، ګذرونو او سیمو جګ ختین دیوالونه درلودل، تعمیراتي مصالح یې ډیرې لومړنۍ او خامې وې. واټونه کوچني او تنګ، نامنظم او کاږه واږه (مارپیچ) وو چې یوازې پلیو کسانو او ډیرو لومړنیو (ابتدایی) لیږدوونکو وسایلو په کې د تګ راتګ امکانات درلودل. د شپې له خوا دهرې سیمې د کوڅې لویې دروازې تړل کیدلې او زیاتره یې دفاعي بڼه درلوده. په هره سیمه کې د یوې قبیلې او یو ملیت کورنۍ اوسیدلې او د قومي

اړیکو پربنسټ یې ژوند کاوه چې د منځنیو پیړیو د ښارونو وضعه راپیژني. په هره سیمه او محله کې قبیلوي دودونه موجود وو، دریځه لرونکی خونې مخ په شمال او د تعمیر مخه به د لمر له لګیدو سره برابره او موافقه وه. ښځو د کور په څلورو دیوالونو کې ژوند کاوه. د نخاس، توارچی نغاره خانی او د بازار دورځې موجودیت ددې لرغونی ښار له ځانګړتیا وو څخه ؤ. ښاري شبکې عبارت دی له مختلفو ګذرونو او سیمو څخه هغه هم په لاندې ډول:

۱- د دیوان بیګی ګذر:

د دیوان بیګی ګذر د شترخانې له سیمې سره نږدې واقع و.

۲- د سردار جان خان ګذر:

دغه سیمه د زاړه ښار په منځ کې له بالاحصار څخه لږ لري پرته وه.

۳- د قاضي ګذر:

دا ګذر اوسنی شوربازار دی چې د تیمورشاه د زمانې د قاضي القضات قاضي فیض محمد په نوم نومول شوې دی.

٤- مراد خاني ګذر:

دا ګذر د احمد شاه بابا او تیمور شاه د دورې له بانفوذ نو میا لیو څخه د سردار مراد خان په نامه یاد شوی چې همدا اوس هم په همدې نامه موجود دی.

٥- دا څکزیانو ګذر:

دا ګذر دا څکزیانو د قبیلی او د هغو د مشر په نوم نومول شوی او اوس هم په همدې نامه یادیږي.

بر سیره پردې کولی شود زاړه ښار د نورو محلونو او سیمو نومونه هم یاد کړو لکه:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بارانه | چنداول | خیابان | قرتای چنداول | اندرابی |
| قصاب کوڅه | | | | |
| علیمردان گذر | | کوچۀ سکه بچه ها | درخت شنگ | جوان شیرها |
| تنور سازی | شترخانه | د خرابات کوڅه | خافی ها | سید جعفر |
| سرآسیاب بالاکوه | | قول آبچکان | نغاره خانه | کوتوالي |
| موچی پرک | د مرده شویانو کوڅه | کهنه فروشي | پایان چوک | د علیمردان کوڅه |
| خوابگاه | شانه سازي | چُقرک کوڅه | غازی خان جنډه | سردار جان خان |
| بالاجوی | کلای هزاره ها | کله خورها | سه دوکان | سرگندنا |

## ٦- د کابل چارچته:

دا بازار چې سریې په لرګیو پوښل شوی و د ۶۰۰ فوټو په اوږدوالي او ۳۰ فوټو په سور د پل خشتي د جومات له دروازی سره متصل د کتاب پلورنځي او د میوند د آبدې او پل خشتي ترمنځ په اوولسمه میلادي پیړۍ کې د علیمردان خان له خوا ودان شوی و چې په شا او خوا کې یې اتلس تجارتي سرایونه موجودو. چارچته په (۱۸٤۲م) کال د انګلیسي جنرال پالک له خوا چور او چپاول شوه. خو ژر بیرته ترمیم شوه. اما په (۱۳۲۸هـ.ش) کال کې د کابل ښار د عصري کولو په منظور دغه بازار په بشپړه توګه وران شو او دغه تاریخي ودانۍ له منځه لاړه.

### رسته (اتحادیه):

په لرغوني کابل کې ډول ډول تجارتي رستې (اتحادیې) موجودې وې د بیلګې په ډول، د بزازۍ رسته: د آهنګرۍ رسته، د مسګرۍ رسته، د زرګرۍ

رسته او داسې نورې چې هرې يوې د صنعتي او توليدي اتحاديې په توګه خپل کارونه سرته رسول. په هره سيمه کې مشخص او ابتدايي حمامونه موجود وو لکه: د کاه فروشی حمام، د کجاوې حمام، د شترخانې حمام، چند اول حمام، د عاشور بيګ حمام، د غلام رضا حمام او داسی نور.

## د لرغوني کابل اجزاوې:

### ۱- ده افغانان:

عبارت وله: جوی شير ،نخاس، شاه دوشمشيره، اندرابي کوڅه، اندرابي، د ګاډی خانی سرای، د غوريوو سرای، د مرغاويو حوض، د قالينو سرای، د سکهـ بچه ها کوڅه، د سيد جعفر کوڅه، سرآسياب، بالاکوه او قول آبچکان.

### ۲- خيابان:

د خيابان کوڅه، کشمش فروشی، د عبدالرحمن خان سرای، نغاره خانه او کوتوالي.

### ۳- مراد خاني:

د حضرت عباس زيارت، د مرده شويانو کوڅه، يو پيسه ګی پول او موچی پرک.

### ٤- سرچوک:

چارچته، کهنه فروشی، پايان چوک، رکاخانه، کتابفروشي، سراجي، کاه فروشي، بوريا فروشي، د محمد قومي سرای،د اعليحضرت باغ، د عليمردان خان کوڅه، د شعبې سرای، خوابګاه، دمستان پول او شانه سازي.

**۵- شوربازار:**

بالاحصار، صدر بازار، لاهوري دروازه، تخته پل، هندوگذر، پېزار دوزي، د چقرک کوڅه، آهنگري، تنورسازي، بارانه، شترخانه، انار فروشي، د رکاخانې بازار، د سراجي بازار، د علي رضا خان کوڅه، باباى خودي، د نواب باغ، خرابات، درخت شنگ، د ډاکتر قاسم کوڅه، د کجاوې حمام، د شترخانې حمام، سپورت سوار، چوب فروشي، د غازي خان جنډه، د سردار جانجان جنډه.

**۶- چنداول:**

د جهان آرا باغ، سرکاريز، بالاجوى، د هزاره گانو کلا، خافي ها، قرتا، کله خورها، سه دوکان، د قاضي باغ، پخته فروشي، د نواب باغ او سرگندنا.

## د زاړه ښار ستونزې:

د کابل زوړ ښار يو ګڼ او مزدحم تجارتي مرکزو. د کاناليزيشن سيستم وجود نه درلود، د ترافيکو بهير د مناسبو لارو نه موجوديت له امله له ستونزو سره مخامخ و، شين کمربند نه و، بريښنا، تيلفون، مخابرات او د اوبو رسولو شبکې له زياتو مشکلاتو سره مواجه وې. د کوڅو او کورونو د قبقه پته څرگنديداى نشوه، ټاکلي مارکيټونه او ورکتونونه موجود نه و، ښار له ټاکلي نقشې او ماستر پلان څخه پر ته پراخيده.

## د معاصر کابل نقشه:

د کابل ښار د پنځه ويشت کلن پلان د په پام کې نيولو له مخې په ښار او ښاري ودانيو کې ستر بدلونونه رامنځته شول. د کابل ښار د بالاحصار له څلورو

دیوالونو څخه ووت او په منظمه او غیر منظمه توگه د ښاری شبکو بنسټ د کابل د سیند او د شیردروازې او آسمايي غره په لمنو او د هغو پرگاونډیو غونډیو کېښودل شو.

نــــو:

د نوی ښار پروژه په ۱۳۱٤هـ. ش کال کې
د شیر شاه میني پروژه په ۱۳۲۱ هـ. ش کال کې
د میرویس میدان پروژه په ۱۳۲۷ هـ. ش کال کې
د ولي کارتي پروژه په ۱۳۲۹هـ. ش کال
د جمال مینې پروژه په ۱۳۲۹هـ .ش کال کې
د پل سوخته د سیند د غاړې پروژه په ۱۳۲۷هـ. ش کال کې
د شاه شهید پروژه په ۱۳۳۱هـ. ش کال کې
د شیر پور پروژه په ۱۳۳٤ هـ. ش کال کې
د دریمی کارتی پروژه په ۱۳۳۷ هـ. ش کال کې
د باغ بالا پروژه په ۱۳۳۹ هـ. ش کال کې
د مامورینو د کارتې پروژه په ۱۳۳۹ هـ. ش کال کې
د ده افغانانو پروژه په ۱۳۳۷ هـ. ش کال کې
د خیرخانې مینې پروژه په ۱۳۵۱ هـ.ش کال کې او د تایمنی واټ پروژه په ۱۳۵۲ هـ.ش کال کې تر لاس لاندې ونیول شوې.

د لومړي ځل لپاره په (۱۳٤۵هـ.ش) کال کې د کابل ښار ماستر پلان طرح شو چې د کابل ښار د اوسیدونکو لپاره (۲۳۷۸۰) هکتاره ځمکه په پام کې نیول شوې وه چې په هغې کې د (۸۰۰) زرو تنو لپاره د اوسیدنې کورونه

برابریدل. خو دویم ماستر پلان (۱۳٤۹) کال د (۱٤۱٦۰۰۰) تنو لپاره په (۲۹۹۰۰) هکتاره ځمکه کې په پام کې نیول شوې و. وروسته په (۱۳٥۷) کال کې د ښار جوړولو کار پوهانو (۳۲۳٤) هکتاره یا (۱٦٥۰۰۰) جریبه ځمکه د دوه ملیونو ښاریانو لپاره په پام کې ونیوله. له ځمکې نه د استفادې ډلبندي یا تصنیف یې په دې ډول دی:

د کابل ښار د ځمکې د استفادې طرز:

۱ - په سلو کې ۲٥ د اوسیدنې سیمه (ساحه).

۲ - په سلو کې (٥٤۳) صنعتي، عامه مرکزونه، شنې ساحې او سړکونه.

۳ - په سلوکی (۸) د زیرمه تونونو (گدامونو) او عمومي پارکنگونو ساحه.

٤ - په سلو کې (٥, ۹) کلتوري او د حلقوي سړکونو سیمې.

٥ - کرنیزې (زراعتي) ساحې (۷٦٥۰) هکتاره ځمکه.

٦ - په سلو کې (٤, ۱) د (٤۰۰) هکتارو معادل د مړستونو (قبرستانونو) لپاره ټوله (۳۲۳٤۰) هکتاره.

د کابل ماستر پلان په لاندینیو څلورو سیمو چې هره یوه یې ځانگړي مرکزونه لري، ویشل شوی دی:

۱ - شمال لویدیځه سیمه: چې ٤۹٦۰ هکتاره ځمکه او ٦۳۰ زره نفوس لري لویدیځ ته یې د افشار غر، جنوب ته یې د آسمایي غر او کابل سیند، شمال ته یې حلقوي سړک او ختیځ ته یې د کابل سیند واقع دي.

۲ - شمال ختیځه سیمه: دا سیمه ۱٦۷۰ هکتاره ځمکه او ۲۱۰ زره تنه نفوس لري چې لویدیځ ته یې د جشن سیمه، حضوري چمن او کابل سیند، شمال ته یې د کابل سیند، ختیځ ته یې حلقوي سړک او جنوب ته یې د مرنجان غونډۍ پرته ده.

٣- جنوب ختیځه سیمه: ځمکه یې ۲۸۰۰ هکتاره او نفوس یې ۳۲۰ زرو ته رسیږي. د دې سیمې لویدیځ ته د شیر دروازې غر، شمال ته یې کابل سیند او د مرنجان غونډۍ ختیځ او جنوب یې حلقوي سړک احاطه کړې دې.

٤- جنوب لویدیځه سیمه: نفوس یې ۸٤۰ زره او ځمکه یې ۷٤۰۰ هکتاره ده چې د لویدیځ او جنوب له لوري له حلقوي سړک، د شمال او ختیځ له خوا د افشار له غره، علی آباد، آسمایي غره او شیر دروازې له غره سره نښتې ده، خو د کابل ښار مرکزي هسته په درې پلاني سیمو الف، ب، ج تصیف شوې ده.

پخوا له دې چې دغه ماستر پلان عملي بڼه اختیار کړي، د ښار په مختلفو ناحیو کې لوړ پوړي ودانۍ او یو پوړ یزې پروژې په لاندنۍ توګه ودانې شوي دي چې د نوي ماستر پلان تطبیق بطی کوي:

- د مرنجان د غونډۍ په شمال او د بي بي مهرو په ختیځ کې (۱، ۲، ۳، ٤،) مکررویان بلاکونه.
- په خیرخانه مینه کې، پنځه سوه فامیلي او د سرې مینې بلاکونه.
- په خیرخانه مینه کې د کور برابرولو (تهیه مسکن) بلاکونه او د پولیسو بلاکونه.
- په خیر خانه مینه کې د ښاروالي بلاکونه، (۹۰) نوي فامیلي د بلاکونه، کلوله پشتې ته څیرمه د ښاروالي بلاکونه.
- په خیرخانه مینه کې د کارګري قصبي بلاکونه.
- د بی بی مهرو د غونډۍ په شمال ختیځ کې هوا یي بلاکونه.
- د خیرخانې مینې په دویمه برخه کې د خیرخانې د پروژې بلاکونه.

د دې ماستر پلان له مخې ټولې ادارې، کارخانې، د استوګنې او تجارتې مرکزونه په لاندې توګه ډلبندي کیدای شي:

الف: تجارتي او خدماتي مرکزونه:

– په خیرخانې مینې، نوی ښار او سرای شمالي کې پنځه ستر تجارتي مرکزونه او یو مرکز د هو دخیلو سیمې ته مخامخ.

– د کمپنۍ، چاردهې، خوشحال مینې، قلای شهاده، باغ رئیس، دارالامان او په واصل آباد کې شپږ تجارتي مرکزونه.

– د لوګر د سیند په شمال لویدیځه برخه او قلای زمانخان کې درې تجارتي مرکزونه.

– د ارزان قیمت پروژې په جنوب ختیځه برخه او د شاه شهید (علیه الرحمه) په سیمه کې درې ستر تجارتي مرکزونه.

– د ښار په مرکز کې د شاه دوشمشیره (علیه الرحمه) او پل خشتي ترمنځ تر پل محمود خان او د میوند واټ په دوو استقامتونو له ابن سینا روغتون څخه د اتفاق ترجوماته او لاهوري دروازې پورې ټوله پراخه تجارتي سیمه ده.

ب– اداري او روزنیزې مؤسسې:

په جنوب لویدیځ او لویدیځه سیمه کې:

د پولي تخنیک، کابل پوهنتون، د دارالامان په جنوب، د ده دانا او چهلستون په سیمه کې پنځه ستر تجارتي مرکزونه.

– په شمال لویدیځ کې:

– په خیر خانه مینه کې دوه ستر مرکزونه، په وزیر محمد اکبرخان مینه

کې یو مرکز اوله آریانا هوتل نه د هوایي ډګر د سړک په ختیځ امتداد مجتمع اداري په پام کې نیول شوي دي.

- په شمال ختیځه برخه کې د کابل سیند په جنوبي څنډو کې دوه ستر مرکزونه په پام کې نیول شوي دي.

- په جنوب ختیځه برخه کې د سید نور محمد شاه مینې (نوې کارتې) په جنوب کې یو اداري او کلتوري مرکز پلان شوي دي.

- د ښار په مرکز کې د نوي ښاراو پل باغ عمومي په منځ کې تر پل محمود خانه د کابل د سیند په شمالي څنډو کې اداري او فرهنګي مرکزونه پلان شوي چې موجود هم دي.

ج- کارخانې او کارځایونه:

- په شمال ختیځه برخه کې له صنعتي پارک څخه د سړک په دواړو خواوو کې تر هود خیلو پورې اوله هغه ځایه د هوایي ډګر تر جنوبه او یوه برخه هم د کابل د هوایي ډګر شمال ته د خواجه رواش د غره په څوړو کې.

- د رحمان مینې او سید نور محمد شاه مینې د سړک په امتداد د لوګر سیند له څنډو تر سید نور محمد شاه مینې. (کارته نو) پورې.

- د لوګر د سیند په جنوبي څنډه کې د ارزان قیمت پروژې په جنوبي استقامت کې د کارخانو لپاره پراخه سیمه په پام کې نیول شوې ده.

- د او سیدنې او مسکوني سیمې د ماستر پلان په شاملو برخو کې په افقي کرښو په نښه شوي دي.

هـ- شنه سیمه په ټکو ښودل شوې ده. عمومي کرښې، د ویالو روانې اوبه او عمومي سړکونه د حلقوي سړکونو په شمول د ماستر پلان په نقشه کې په

څرګنده توګه ښودل شوي دي. په دې ماستر پلان کې مکروریان، ۲٤۰ وړکتونونه ۲۵۰ لومړني ښوونځي، ۱۰۰ ثانوي ښوونځي، ۵۰ د ځوانو ښوونځي، طبي تأسیسات، عاجل او سیمه ایز کلینیکونه، درملتونونه، طبي لابراتوارونه، ۳۰ عاجل روغتونونه، ۲۵ عصري حمامونه، ۳۵ ښاري کتابتونونه، ۲۰۰ جوماتونه، ۲۰ د فاتحې اخیستلو سالونونه، ۲۰۰۰ نانوایي ګانې او د اطفائیې ۲۲۵ مرکزونه په پام کې نیول شوي دي.

د سړکونو سوریا پلنوالی له ۲۰ نه تر ۱۱۰ مترو پورې ټاکل شوی دی. او په ماستر پلان کې د شاملو سړکونو ټول اوږدوالی ۴۸۰ کیلومتره او مساحت یې په مجموعي ډول ۳۳۰۳ هکتارونه رسیږي.

د هوایي ډګر په سړک جکپوړې ودانۍ او کلتوري مرکزونه په پام کې نیول شوي وو. د ښار په ختیځه برخه کې کلتوري او روزنیز مرکزونه او په مرکز کې تجارتي تأسیسات په پام کې نیول شوي وو چې متأسفانه تر اوسه عملي شوي نه دي. کابل ښاروالي دغه ځلور سیمې په شپاړسو ښاري ناحیو ویشلي دي. هغه هم په لاندې ډول:

**لومړۍ ناحیه:**

په دې ناحیه کې د هارتن پل، د خواجه صفا د غره شمالي برخه تر بالاحصاره، پل محمود خان، د کابل سیند جنوب، باغبان کوڅه، پامیر سینما، باغ علیمردان او میوند واټ شامل دي. « د لومړۍ ناحیې ټیلفون ۲۳۵۷۷ ».

**دویمه ناحیه:**

په دې ناحیه کې ماشینخانه، دهارتن پول، سره میاشت، د کابل د سیند غاړه، د آسمایي غره شمالي برخه، د سالنګ واټ جنوبي برخه، د پروان مینې په استقامت د باغ بالا تر ګردنې پورې « ټیلفون ۵ ۳۱۲۰ ».

**دریمه ناحیه:**

له هارتن پله څخه د سیلو تر سړکه، د چمچه مست سیند شمالی خوا تر پل سوخته پورې، د دارالامان سړک، کوز علاؤالدین، دریمه کارته، سرای غزني ، شیرشاه مینه، میرویس میدان، نهر درسن، د همزنګ او جمال مینه. « تیلفون ٤٢٩٤٠ ».

**څلورمه ناحیه:**

په دې ناحیه کې د سالنګ واټ شمالي برخه، د باغ بالا تر ګردنې، پروان مینه، ده کیپک، بادام باغ، د انصاری څلور لارې، د صدارت څلور لارې د شیر پور تر څلور لارې پورې، د تایمني د سړک په استقامت کلوله پشته، دوزیر آباد پروژه او دریم پروان. « تیلفون ٣١٨٦٠ ).

**پنځمه ناحیه:**

له خوشحال مینې څخه تر قرغې، قلعه ء جواد ، افشار، قلای وزیر، نو آباد ، سپین کلی، نیاز بیګ، د فاضل بیګ نو آباد ، قلعه ء کاشف، د قمبر څلور لارې، قلای واحد، د چمچه مست سیند غاړه، د سیلو د سړک له څنډې د باغ بالا تر ګردنې او مامورینو تر کارتی، د پولی تخنیک په شمول. « تیلفون: ٤٢٧٢٩ ».

**شپږمه ناحیه:**

د دارالامان د سړک لویدیځه برخه،قلعه ء قاضی، د برچې د ښته، قلعه ء شهاده،قلعه وزیر، د چاردهی چار قلعه، کلای بختیار، قلعه ء بهادر خان، د چمچه مست سیند جنوبي برخه تر قلعه ء قاضي پورې، ګل خانه او دریمه کارته. « تیلفون ٤٤١٦٢ ».

**اوومه ناحیه:**

د چمچه مست سیند د غاړې جنوبي برخه، گذرگاه، بریښنا کوټ، واصل آباد، قلای غیبي، موسهی چهاردهی، آقا علی شمس، چهلستون، د تاج بیگ غونډۍ، ده دانا، ده مراد خان، ایوب خان مینه، د دارالامان د سړک ختیځه برخه تر دوغ آباده، قلای اسفندیار، گلباغ، قلای فتوح، ترتنیي کوټ پورې. تیلفون: ٤٢١٥٦ ».

**اتمه ناحیه:**

د حضوری چمن سیمه، شاه شهید، رحمان مینه، سید نور محمد شاه مینه، د بگرامیو نساجی، قلای صاحب زاده، قلعچه، باغ سید، قلای حشمت خان، بیني حصار، شهدای صالحین، تریک لنگه کوتل پورې. تیلفون ٢٦١٠٦ »

**نهمه ناحیه:**

مکروریان، شش درک، هودخیل، پلڅرخي، «فعلاً قلعه زمان خان او ده خدایداد، د «١٣٧٥ هـ.ش کال پر اساس». (١)

**لسمه ناحیه:**

نوی ښار، له زینب ننداري څخه د وزیر آباد تر پروژې، د تایمنی د سړک د شمال په استقامت، وزیر آباد، وزیر محمد اکبر خان مینه،

---

(١) په نهمه ناحیه کې دویم، دریيم او څلورم مکروریان، محمد عمر خان قلعه، د میر عباس قلعه، دقلعه وکیل یوه برخه (د هوایي ډگر د سړک ختیځ کورونه)، تر هوا پیژندنې پورې سیمې هم شامل دي. (ژباړن)

شیرپور ، قلعه ٔ فتح الله خان ، قلعه ٔ موسی ، قلعه ٔ جنگی ، د بي بي مهرو قلعه ٔ خاطر . «تیلفون ۳۳۹٤۰ ». (۱)

**یوولسمه ناحیه:**

په دې ناحیه کې د ده کیپک ،د پوستین دوزانو کوڅه ، د آریانا پروژه ، د نورستان سړک ، د کوهستان سړک ، د ۳۱۵ لوا شاته ، هزاره ٔ بغل ، د نجارانو قلعه لومړۍ برخه ، او د خشت هوختیف دویمه برخه شامل دي.

**دوولسمه ناحیه:**

د ارزان قیمت پروژې ساحه ، زن آباد او د پولیسو د مأموریت ساحه په برکی نیسی چې د کابل ښار ختیځ ته په اوولس کیلومترۍ کې موقعیت لري.

**دیارلسمه ناحیه:**

ذ ده سبز سیمه او گاونډي کلی او بانډې دي چې د یوې ناحیې عملي جنبه یې نه ده ترلاسه کړې.

**څوارلسمه ناحیه:**

تیاکل شوې وه چې د پغمان ولسوالی د یوې ناحیې په توگه وپیژندل شي چې تراوسه یې عملي بنه نه ده غوره کړې.

**پنځلسمه ناحیه:**

د قلعه ٔ نجاران لومړۍ برخه ، د تایمنی یوه برخه ، لب جر ، د خیرخانې مینې دریمه برخه ، پنځه سوه فامیلي ، سره مینه ، پروژهٔ جدید ، د پارک گولایی ،

(۱) په لسمه ناحیه کې د هوایي ډگر د سړک په استقامت لویدیځ پورته د بي بي مهرو (ع) ټوله سیمه د هوایي ډگر تر دوسر کې (قلعهٔ وکیل ، قلعهٔ چمن ، هوایي بلاکونه) او کارگري قصبه د هوایي ډگر په شمول هم شامل دي (ژباړن).

د جمهوریت گولایی، خواجه بغرا، د خواجه بغرا غونډۍ او «پوسته ٔکچالو» په کې شامل دی.

**شپاړسمه ناحیه:**

لومړی مکروریان، د چمن سیمه، سمنټ خانه، قلعه ٔزمانخان، ده خدایداد، پل پادشاه او د قابل بای سیمه په برکی نیسی (۱) اوس د تیلفونونو زیاتره نومرې فعالې نه دي او یا یې نومرې بدلې شوي دي.

په دې ترتیب د پغمان له لمنې تر بګرامیو او له خواجه بغرا نه تر سرآسیاب او د دارالامان په جنوب کې دوغ آباد، ریشخور د «ستر کابل» ښاري ناحیې شاملې دي.

یوازې د کابل په لویدیځ کې د ارغنده بانډې او د شیوه کیو، بګرامیو، ده یعقوب کلي او بانډې د کابل په وروستۍ ختیځه برخه کې د ښار د اطراف په توګه پیژندل کیږي او دواړه ساحې د ښار په لرې احاطه کې د اطراف د مهاجرت محورونه جوړوي چې په کرنه او مالداري بوخت دي.

د لوړ پوړیزو ودانیو ددې پروژې په څنګ کې د ټولنیزو او روغتیایي خدمتونو تأسیسات، د جمهوریت روغتون، نادرشاه روغتون، د طبي علومو د

---

(۱) «۱۲-۱۳-۱٤-۱٥-۱٦» ناحیه له ۱۳۷٥ کال څخه وروسته په کابل ښاروالی کې مطرح شوې دي. که نه نو تر ۱۳۷٥ کاله پورې د کابل ښاري ناحیې هماغه یوولس ناحیې دي او ارزان قیمت پروژه هم خپل ځانګړی ناحیوي تشکیلات لري، امکان لري د لنډمهالي اداري او انتقالي حکومت په دوران کې د غه موضوعګانې په اساسي توګه روښانه شي. «د ۱۳۷٥ کال سر شمیرنه، د ۱۹۹٦-۱۹۹۷) مطابق» د افغانستان د مرکزی احصایې اداره.

اکاډمی روغتون (چهارصدبستر)، وزیر اکبرخان، ابن سینا، د اندراګاندي دماشوم د روغتیا روغتون (صحت طفل) د مرکزي قواو روغتون، ملالی زیږنتون، د نور روغتون، سناتوریم، د پولیسو روغتون د اهریو په خپل وارد کابل د خلکو د روغتیا او روغتیايي خدمتونو په لاره کې خپلې خپلی هڅې کوي او ددې ترڅنګ په هره ناحیه کې زیات ښاری کلینیکونه، کتنځایونه او شخصي کتنځی او کلینیکونه، له پنځو سوو زیات درملتونونه او زیات شمیر معالج ډاکتران د خلکو په اختیار کې ورکړل شول. زده کړې د مدرسې له سطحې نه لوړو زده کړو پوهنتونونو اوله هیواد نه بهر زده کړو ته انکشاف وکړ. ورځپاڼو، جریدو اود ډله ایز ارتباط وسایلو، د انټرنټ او سپوږمکیو د تیلفونونو په سطحه پراختیاو موندله. کورونه ځوپوړیز، د ښار سړکونه په معاصره طریقه پلن رو ښانه په ترافیکي څراغونو او یا د ترافیکي وسایطو په دوران مجهز شول.

په ټولو برخو کې تلفون، تلګراف، رادیو، تلویزیون، ډول ډول رسمی او خصوصي خپرونې مختلفې مطبعې، د ښځینه طبقې د زده کړې د کار حق او په دموکراسي شکل اداره ،دولتي اداري، کابینه، جمهور رئیس، په پادشاهانو او جمهوري ریاست پورې اړوندې مانۍ، معاصر عسکري او اداري نظام رامنځته شو. د ښار تصنیف په بیلا بیلو ناحیو، ښاري ماستر پلان او د ښاري ځمکو تصنیف، سرشمیرنې او ښاري احصایې په بیلا بیلو برخو کې په ځانګړو اهدافو په ښار کې ترلاس لاندې ونیول شول.

د کابل د (١٣٧٥هـ.ش) کال وروستي ماستر پلان ته د (٣٢, ٣٤٠) هکتاره ځمکې په ساحه کې پراختیا ورکړه شوه او د کابل د ښار نفوس دوه

ملیونو تنه اټکل شو. په دې ماستر پلان کې د استوګنې ودانۍ په دې ډول په نظر کې نیول شوې وې:

په سلوکې له ۱۰ تر ۱۵ ودانۍ ۹ پوړیزه یا تر دې زیاتې.

په سلوکې له ٦٥ تر ۷۰ ودانۍ ٤ او پنځه پوړیزه.

په سلوکې له ۲۰ تر ۲۵ ودانۍ ۲ او ۳ پوړیزه.

داسې پلان ترتیب شوی و چې ښار باید په خپل عمودي بعد کې پراختیا ومومي او د ښار له افقي پراختیا څخه مخنیوی وشي. د ښار بیلا بیلې اجزاوې لکه څنګه چې مو د روپیژندی له پرونی کابل سره هیڅ سمون نه لري. د ناحیو په هر یوجز کې ټول فرهنګي، اقتصادي، صناعتي او اداري تسهیلات په نظر کې نیول شوی دي چې پرونی کابل ورڅخه برخمن نه وو.

او سیدونکو ته تریوې اندازې د ښنبلو او به، بریښنا، په ښار کې سالمه او روغتیایي فضا برابره شوې ده.

## څلورم څپرکی

# د کابل ښار
# د افغانستان د سیاسي مرکز په توګه

د کابل ښار د تیمور شاه د سلطنت پر مهال بیا سیاسي مرکز شو، په دې ترڅ کې د کابل په زاړه ښار کې بدلونونه او پراختیا وې رامنځته شوې، کله چې په (۱۸۸۸م) کال اوسنی ارګ چې عبدالرحمن خان یې بنسټ اینبې و تکمیل شو، دولتي اداره له بالاحصار څخه ارګ ته ولېږدېده او د وزارتونو ادارې د یوې ټولنې (مجتمع) په بڼه سره راټولې شوې. د دولت ریاست شاهي وي که جمهوري په ارګ کې مستقرې، عظمې صدارت ته د ارګ ترڅنګ ځای ورکړل شو او نورې ادارې د ارګ د شاوخوا په لرې او نږدې سیمو کې ځای پرځای شوې او د ښار له پراختیا سره سم د دې وزارتونو په ساختماني بڼه کې مثبت بدلونونه څرګند شول. د مخابراتو د وزارت ښکلې او مجللې (۱۸) پوړیزې ودانۍ کابل ته نوې بڼه ورکړه. د ملي دفاع وزارت، د عدلیې وزارت، د کانو او صنایعو وزارت، د پښتونستان په څلور لارې کې د ارګ په ګاونډ کې واقع دي. د پوهنې، اطلاعاتو او کلتور وزارتونه د ښار په مرکز (ده افغانانو) کې موقعیت لري. د صدارت قصر، د پلان وزارت، د کلیو د پراختیا وزارت، امنیت او د کورنیو چارو وزارت په لېږ واټن د ارګ په لویدیځه خواکې موقعیت لري. د

بهرنیو چارو او سرحدونو د چارو وزارتونه د ارګ لویدیځ خواته پراته دي. په همدې توګه د مرکزي بانک (د افغانستان بانک)، ملي بانک او پښتني تجارتي بانک، کابل ښاروالي او د کابل ولایت بنسټ هم د ښار په مرکز کې اېښودل شوي دي. پو شمیر وزارتونه په علاؤالدین کې د دارالامان د سړک په امتداد او یا په شیرشاه مینه کې موقعیت لري. د بېلګې په توګه د سوداګرۍ وزارت د علاؤالدین په سیمه او د لوړو زده کړو وزارت په شیرشاه مینه کې، همدارنګه مقننه قوه (پارلمان) ته هم د علاؤالدین په سیمه کې ځای ورکړل شوی دی.

د هوايي ډګر د سړک په امتداد د عامې روغتیا وزارت، ملکي هوانورد دی او ستره محکمه ځای لري. د برېښنا د انرژۍ وزارت د خیرخانې په بادام باغ کې او د فواید عامې وزارت په لومړي مکرویان کې خپلې ورځنۍ چارې پرمخ بیايي. په همدې ډول د متحابه دولتونو ټول سفارتونه او د ملګرو ملتو ادارې او غیر دولتي مؤسسې خپلې ودانۍ او مستقلې ادارې په خپل واک کې لري. له دې جملې څخه د روسیې سفارت د دارالامان په سړک او د امریکا د متحدو ایالتونو سفارت د هوايي ډګر د سړک په امتداد په وزیر اکبرخان مینه کې مجللې او ښکلې ودانۍ لري.

د ارګ په داخل کې ښکلې او په زړه پورې ودانۍ لکه د ګلخانې ماڼۍ، د دلکشاه ماڼۍ، د سلامخانې ماڼۍ او لومړی لمبر ماڼۍ وجود لري. د بهرنیو چارو وزارت د ستورې ماڼۍ او د صدارت ماڼۍ له مهمو او ټینګو ودانیو څخه دي چې په ښکلې معمارۍ جوړې شوې دي. د کابل په جنوب کې د چهلستون ماڼۍ د کابل له ښکلو ماڼیو څخه ده چې د زمانشاه د حکومت په دوره کې ودانه

شوې ده، وروسته د هغې په ساختمان کې زیات بدلونونه رامنځته شول، د قوروغ د غره په شمال ختیځه لمن کې د دارالامان ماڼۍ او د تاج بیګ د غونډۍ ماڼۍ د امان الله خان له شاهکاریو څخه دي چې په دې ښکلا سره په کابل کې لږ ترسترګو کیږي. د ښوونې او روزنې وزارت او د کابل ولایت په لویدیځ کې د ملي آرشیف ودانۍ د کابل ښار له سترو او وتلو تاریخي و دانیو څخه ګڼل کیږي چې د هیواد زیاد تره رسمي او تاریخي اسناد په کې خوندي دي.

## په کابل کې مهمې ادارې:

کابل د افغانستان د پلازمینې او سیاسي مرکز په توګه د یوه مستقل هیواد ټول اداري، ټولنیز، اقتصادي او پوځي تشکیلات لري چې دلته یې په لنډه توګه یادونه کوو:

### د جمهوري ریاست مقام:

مقرېې د ګلخانې، دلکشاه، سلام خانې ماڼۍ او لومړی لمبر قصر کې دی.

### د صدارت مقام:

صدراعظم په بیلا بیلو برخو کې له څلورو څخه ترپنځو پورې مرستیالان لرل. د وزیرانو شورۍ د چارو اداره د دولت د سیاسي، اقتصادي، علمي او پوځي چارو په اړه پراخ تشکیلات لري. مهم وزارتونه یې دادي:

- د بهرنیو چارو وزارت
- د ملي دفاع وزارت
- د امنیت وزارت (اوس ریاست)
- د مخابراتو وزارت

- د اطلاعاتو او کلتور وزارت
- د ترانسپورت وزارت
- د ملکی هوا نوردی وزارت
- د بیا رغاونی وزارت
- د سپکو صنایعو او خوراکی موادو وزارت
- د مالیې وزارت
- د ساختماني چارو وزارت
- د سرحدونو د چارو وزارت
- د پوهني وزارت
- د لوړو او مسلکي زده کړو وزارت
- د عامې روغتیا وزارت
- د بریښنا انرژی وزارت
- د اوبو لګولو وزارت
- د عدلیې وزارت
- د کرني او مالداری وزارت
- د اسلامي شؤنو وزارت
- د پلان وزارت
- د سوداګری وزارت
- د کلیو د رغاونی او پراختیا وزارت
- د راستنیدونکو د چارو وزارت
- مرکزي بانکونه (د افغانستان بانک، ملي بانک، پښتني تجارتي بانک)

- د کابل ښاروالۍ ریاست
- د کابل ولایت

د کابل ښاروالی ریاست چې د ښار او ښاروالی اړوندې چارې سمبالوي ځلور مرستیالان او په مرکزي اداره کې مختلف ریاستونه او د ناحیو (۱٦) ریاستونه لري چې د ښار په بېلا بېلو سیمو کې موقعیت لري د بیو د کنترول، د ښار تنظیف، ښاري مالبې او ساختماني چارې د کابل ښاروالي د مختلفو څانګو له خوا تر سره کېږي، لاندینی تصدي ګانې هم له کابل ښاروالی سره ګډې هڅې کوي:

- د کلتوري خدمتونو د تصدی لوی ریاست
- د جوماتونه، جماعت خاني، تکیه خانې، سینما ګانې او درمسالونه.
- د هوټلونو د تصدی ریاست.
- د مهندسي او پلان جوړولو لوی ریاست
- د مکروریانو د ساتنې او څارنې د تصدی لوی ریاست.
- د اوبو رسولو او کانالیزاسیون د تصدی لوی ریاست.
- د کابل ښاروالی د ودانو لود چارود تصدی لوی ریاست.
- د کورجوړولو د فابریکې د تصدی لوی ریاست.
- د افغاني سرې میاشتې د ټولنې لوی ریاست.

په کابل کې اتلس سینما ګانې فعالې وې، لکه: د آریانا سینما، آریوب سینما، اقبال سینما، باختر سینما، بریکوټ سینما، بهارستان سینما، بهزاد سینما، پارک سینما، پامیر سینما، تیمور شاهی سینما، د خیرخانی سینما، زینب سینما، فرخی سینما، کابل ننداری، ملی سینما، میرویس سینما او

میوند سینما خو یو شمیر یې پخو او رانې او تخریب شوې دي. برسیره پردې په کابل کې پنځه درمسالونه (آسمایی، بابا منسا سنگهـ، پیراتن ناب، خالصه او هراري ډله) هم موجود دي.

## بانکونه او تجارتي مرکزونه:

د تجارتي چارو د چلند د اسانتیا وو په منظور په کابل ښار کې لاندیني بانکونه فعالیت کوي:

- د افغانستان بانک، د افغانستان د مرکزي بانک په توگه چې په ادارو او دولتی حسابونو پورې اړوند دی.
- ملي بانک د افغانستان دویم بانک دی چې ملي او تجارتي پانگوته ځای ورکوی او ساتي یې.
- پښتني تجارتي بانک په مطلق ډول د خلکو او سوداگرو په خدمت کې دي.
- د صنعتي پراختیا بانک، په هیواد کې د صنایعو د پراختیا په منظور فعالیت کوي.
- رهنی او تعمیراتي بانک، د آبادي او تعمیراتی پروژو په چارو مصروف دی.
- د صادراتو د پراختیا بانک، د تجارتی مالونو په صادرولو او تجارت کې هڅه کوي.
- د کرنې د پراختیا بانک، په کرنیزو پروژو کې له ځمکه والو سره مرسته کوي.

- د دې بانکونو ترڅنګ په کابل ښار کې تجارت او تجارتي بازار تريوى اندازې پراختيا موندلې ده چې د پانګوالو د فعال تجارت پايلې (نتايج) د ښار په تجارتي مرکزونو، د هغه په شاوخوا سيمو او يا د ښار په مرکز کې په لاندې ډول ليدلى شو:

## ۱ - د ښار په مرکز کې تجارتي سيمې:

د شاه دوشمشيره له پله څخه د کابل سيند په دو واستقامتونو د دواړو واټونو په څنډو کې تر پل باغ عمومي، پل خشتي، مراد خانى، نادر پښتون واټ پورې، د مترو پول هوټل او پلازا هوټل په استقامت او هلته د آسمايي واټ په دوه خواوو د آسمايي تر درمسال پورې ټول تجارتي او سوداګري مرکزونه دي چې په خوږوړيزو ودانيو کې ځاى لري.

د کابل سيند په جنوبي څنډو کې له پل باغ عمومي نه تر پل خشتي او له هغه ځايه د نادر پښتون واټ په امتداد د سپاهي ګمنام (نوم ورکى سرتيرى) په استقامت، د ميوندواټ په دوو خواوو تر حضوري چمنه، همدارنګه د تيمور شاهي ګنبدې نه د چنداول ترسه دوکانه، منډوى او د ښار مرکزي بازار موقعيت لري چې له څلويښتو زيات سرايونه او يو شمير زيات تجارتي دوکانو نه پکې شته دي. له تجارتي پلوه دبزازي، ميوې، غوړيو، اوړو، وريجو، سګرټو، بايسکلونو، قرطاسيې، چاى او بورې يو زيات شمير سرايونه او دوکانونه او همدارنګه د بنجاره او مميزو سرايونه او داسې نورهم موجود دي.

په همدې ترتيب د کابل ولايت په شمال کې د صدارت له څلور لارې څخه د کورنيو چارو تروزارت پورې زيات تجارتي دوکانونه شته.

د کورنیو چارو وزارت په ختیځ کې د توره بازخان تر څلور لارې پورې د ګلسازی او انتیک پلورنې په یوه اوږده کوڅه کې په بشپړه توګه تجارتي دوکانونه وجود لري. باغ قاضي او د چنداولو دسه دوکان شاوخوا د لومړیو موادو پلورنځي او د شیریني جوړولو سیمې دي.

د نوی ښار د پارک په جنوبي خواکې د حاجی یعقوب له جوماته او د حاجی یعقوب له څلور لارې څخه د مرکزی قواوو تر روغتونه او د انصاري له څلور لارې څخه تر کلوله پشتې او د ښار والی تر بلاکونو پورې ټوله تجارتي سیمه او د پلورنې مارکیټونه دی.

۲ - د سالنګ واټ په امتداد د باغ بالا په استقامت تر آریانا کارتې او پروان مینې او همدارنګه د سرای شمالي په استقامت ټولې تجارتې، تخنیکي او صناعتي سیمې دي.

۳ - د کابل په لویدیځ کې د کمپنی بازار، د میرویس میدان بازار، د قمبر د څلور لارې بازار، د پل سوخته بازار، قلای شهاده، د دشت برچي بازار او د مهتاب قلا بازار دیا دولو وړدي. په دریمه کارته کې د پل سرخ بازار، د دارالامان بازار، د ده دانا بازار، د ګذرګاه بازار د تجارتي ګنې ګونې سیمې دي.

٤ - د مرکزي قواوو (قوای مرکز) د سړک په امتداد د آقمراد د بلاک په استقامت یاد شوی واټ په بشپړه توګه د موټرو د پرزو او د عراده جاتو د تخنیکي اړتیاوو د پیرودنې او پلورنې سیمه ده.

د ښار په مرکز کې د شهزاده سرای، آریانا کارته او سرای شمالي د اسعارو دراکړې ورکړې (تبادلې) لوی مرکزونه ګنل کیږي.

۵- د کابل په ختيځ لوري کې د مکرويانونو بازار، د اقبال سينما تـه څېرمه بازار او د رحمن مينې وروستۍ برخه د يادولو وړدي. د شاه شهيد د ځلور لارې په بازار کې هم يو شمير تجارتي دوکانونه موجود دي.

۶- په خيرخانه مينه کې د مريمې د ليسې دواړ بازار، د خشت هوختيف د ځلور لارې بازار، سراى شمالي تر يوو نسمي حوزې او له برکې نه تر دريم پروانه پورې ټولې لويې تجارتي سيمې دي. د کور برابرولو (تهيه مسکن) او د تايمنى د ځلور لارې د تيلو پلورنځي د کلوله پشتې له ځلور لارې نه د تايمنيو تر ځلور لارې، له تايمني نه تر لب جرپورې دودانيو د لرګيو پلورنځى او د خواجه بغراله درې لارې څخه د نجارانو کلاتر ځلور لارې پورې د خيرخانې په داخل کې د موټرو پلورنځي ليدل کيږي.

۷- لـه دويـم پـروان نه د کلـوله پشتې تر ځلور لارې د موټرو د پلورنې سيمه ده. همدارنګه د انـصاري په ځلور لارې کې يولوى موټر پلورنځى فعال دى.

په هر حال له (۱۳۵۷) کال څخه د مخه په کابل کې د احصايې له مخې (۱۶,۵۳۶) دوکانونه او (۲۳۱) سرايونه ثبت شوي دي. چې متأسفانه زيات شميريې په وروستيو دوه نيمو لسيزو کې د جګړو له امله ويجاړ او له منځه تللي دي. برسيره پردې د ښار په مختلفو برخو کې د (۳,۳۴۵) خونو په لرلو سره (۴۵) کاروانسرايونه ثبت او راجستر شوي وو.

## د کابل پر تاريخي مرکزونو د نويو ودانيو اغيزه:

په (۱۳۲۸) کال کې د کابل ښار د عصري کولو د لومړي پړاو په عملي

کولو سره د کابل تاریخي سیمو په لاندیني توگه خپل ځایونه معاصرو ښاري ودانیو او ځایونو ته پریښودل:

- د بالاحصار د ننه ودانۍ له زیاتو بدلونونو سره مخامخ شوې، په ځانگړې توگه کله چې د محمد ظاهرشاه د سلطنت په لومړیو کې د حربیې ښوونځی هلته ولیږدول شو.

د لاهوري دروازې او د هغې د صدر د بازار چې د چمن د مخامخ واټ په امتداد پروت و د ماهیپر د لارې په پرانیستلو سره خپلې پخوانۍ ځانگړتیاوې (اوصاف) له لاسه ورکړې. او صدر بازار د دویمې درجې دو کانونو ردیف ته تغیر شکل وکړ ځکه چې نورو مارکیټونو د تیمورشاهي او نوي منډوي گاونډ ته لیږدیدنې (نقل مکان) وکړې.

د کوتوالي گنبذه او نغاره خانه چې یوه د بلې بشپړونکي وه د خپلواکی واټ او د دفاع وزارت د جنوبي خوا مقابل پارک په برخه کې یې موقعیت تصادف کاوه، دواړه ویجاړ شول او د ارگ ختیځه منظره په شنې ساحې او پراخه واټ بدله شوه. همدارنگه د محمود خان پله په وړاندې د ساعت برج د کابل په وروستیو جگړو کې په بشپړه توگه ویجاړ شوی دی، چې دا هم یو ښکلی تاریخي برج و.

## د کابل چارچته:

له ښکلو اوو یا ړمنو تاریخي پاتې شونو څخه وه چې د سپاهی گمنام (نوم ورکی سرتیری) څخه پیل کیده او په پل خشتي کې پای ته رسیده چې د زاړه ښار د راکړې ورکړې د گڼ میشتې سیمې له لویو تجارتي سیمو څخه گڼل

کیده او په (۱۳۲۸) کال ویجاړه شوه په هغې کې د ښکلي لرګین صنعت څخه کار اخیستل شوی وو چې ټول له منځه یوړل شول.

په هغې کې بیلا بیلې تجارتي او صنعتي رستې موجودې وې او په شاوخوا کې یې له (۱٤) څخه زیاتو تجارتي سرایونو شته والی درلود. له ویجاړید وروسته یې خپل ځای لوړ پوړو ودانیو، تجارتي سرایونو او د کتابونو د پلورلو دوکانونو ته پریښود، د نادر پښتون واټ لارې او د پل خشتي جومات ته د ننوتلو لارې پراختیا وموندله.

– عمومي باغ، د لطیف باغ، د جهان آراء باغ، د قاضي باغ، د نواب باغ او د اعلیحضرت باغ چې په زاړه ښار کې ښکلي او تاریخي باغونه وو، ځای یې دزاړه ښار اجزاوو ونیو. او د قاضي باغ فعلاً د غذایي موادو د یوه مارکیټ په توګه د باغ بڼه له لاسه ورکړې ده.

د علم ګنج باغ ځای ماشینخانې او مرستون نیولی او دشهرآرا باغ ځای د قصابي مارکیټ، سرې میاشتې، ځینو عسکري ودانیو، او د شهرآرا د برکي شخصي کورونو نیولی دی. البته مخکې له دې کابل د یوه تازه او ښکلي د بڼ په څیر دخلکو د ساعتیري ځای وو او بابر د باغونو د جوړولو چارې هند ته اقتباس کړې.

## په کابل کې پوهنه (معارف):

پوهنه د یوې ټولنې د ټولنیز، اقتصادي او سیاسي ودې د پرمختیا او نهضتونو بنسټ ګڼل کیږي، په کابل کې د لومړي ځل لپاره امیر شیر علیخان دې کار ته اوږه ورکړه (۱۲۵۹ هـ.ش) او د حربیې د ښوونځي، د دیني علومو د

مدرسې او یوه ملکي ښوونځي په بنسټ ایښودلو سره یې د پوهنې اساس کېښود. وروسته امیر حبیب الله خان (۱۲۸۲ هـ ش) دغه نهضت پیاوړی کړ او د حبیبې ښوونځی یې پرانیست، د حربیه فنونو ښوونځی ته یې انکشاف ورکړ چې د ټولو شاګردانو شمیر یې (۴۰۰۰) ته رسیده. د امان الله خان په وخت کې د کابل په ښار او ولایت کې (۲۲) ښوونځي منځ ته راغلل او د هغو تر څنګ په کابل کې مسلکي او لوړ (عالي) ښوونځي هم پرانیستل شول.

لکه: د نفیسه صنایعو ښوونځی، د دفتر داری اصول، دارالمعلمین، حکام، قضاء او مساحت. په (۱۳۰۱-۱۳۰۶) کال کې امانیه ښوونځی (استقلال لیسه)، امانی ښوونځی (نجات لیسه)، د غازي ښوونځی (د غازی لیسه) په ۱۳۰۲ کال کې د مستوراتو او عصمت ښوونځی په تدریس پیل وکړ.

د محمد نادرشاه په دوره کې لومړنی ښوونځی (ابتدایی)، رشدیی، اعدادیې او د پوهنتون د لوړو زده کړو په سطحه یعنی د طب پوهنځی د لومړي ځل لپاره د کابل په ښار کې پیل او پرانیستل شو.

د اعلیحضرت محمد ظاهرشاه په دوره کې په عرفاني ساحه کې په پراخه اندازه ریفورم او انکشاف رامنځ ته شو. په (۱۳۱۴ هـ.ش) کال، لومړنۍ دوره اجباري شوه او په (۱۳۲۹) کال ښځینه ښوونځی پرانیستل شول. له بیسوادۍ سره مبارزه پیل شوه او لوړو زده کړو د پوهنتون او پوهنځیو په سطحه پراختیا ومونده.

په (۱۳۵۰) کال کې د کابل په ښار کې د پوهنې د زده کوونکو شمیر په دې ډول وو:

ښاري لومړني ښوونځي ۲۵۳ , ۳۸ هلکان او ۸۳۵ , ۳۲ نجونې.

ښاري منځني ښوونځي ۷۵۸ , ۱۲ هلکان او ٤٤۱ , ٦ نجوني.

ښاري ليسې ۳٦٤ , ٦ هلکان او ۷٤٦ , ۲ نجوني.

ښاري ښوونکي ۲٦۰ , ۱ نارينه ٦٥٦ , ۱ ښځې.

د کابل ولايت د لومړنيو ښوونځيو زده کوونکي ۷٥۳ , ۲ هلکان او ۸ ۰ ٥ نجونې

مستقل لومړني ښوونځي ٤٥٥ , ۲۱ هلکان او ٦۸۰ , ۳ نجونې.

اړوند لومړني منځني ښوونځي ۲۹۱ , ٤ هلکان او ۱٤۱ نجونې.

د ليسو لومړني ښوونځي ۹۸۷ هلکان.

د کابل ولايت د ښوونکو شمير ۸٥۱ نارينه او ۱٤۰ ښځينه ښوونکې.

همدارنګه د کابل په ښار کې د صنعت د ادارې انستيتوت، د محاسبې انستيتوت، بدني روزنې، د افغان سيد جمال الدين د ښوونکو د روزنې مؤسسه، د ښوونکو د روزنې اکاډمي، د کرنې عالي انستيتوت، د روښان دارالمعلمين، د صنايع ليسه، ميخانيکي ليسه، د تجارت ليسه، ثانوي تخنيک، د ميرمنو ټولنې ليسه، د موزيک ليسه، جمهوريت ليسه، د هوټلدارۍ ليسه، لابراتوارونه، د عايشې دراني ليسه، د ملالۍ ليسه، د زرغونې ليسه او داسې نور يې بيلګې يې منځ ته راغلې.

د دولت د هڅو او سعې په نتيجه کې د کابل په ښار کې د لوړو زده کړو زمينه برابره شوه، په (۱۳۱۱) کال د طب پوهنځی پرانيستل شو، حربي پوهنتون او د پوليسو اکاډمي په فعاله توګه خپل تدريس ته دوام ورکړ، د کابل پوهنتون، د پولي تخنيک انستيتوت او پيداګوژي

پراختیا وموندله او د کابل پوهنتون په (۱۳۲٦) کال په یوه علمي واحد بدل شو چې ځانګړی او بیلا بیل پوهنځي لري.

د طب پوهنځي په (۱۳۱۱هـ.ش) کال تأسیس او په (۱۳٦۰) کال کې د کابل د طب په دولتي انستیتوت بدل شو:

د کابل پوهنتون دغه لاندیني پوهنځي لري.

- د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځی، په (۱۳۱۷) کال کې تأسیس شوی دی.
- د علومو (ساینس) پوهنځی، په (۱۳۲۲) کال کې تأسیس شوی دی.
- د شرعیاتو پوهنځي، په (۱۳۲۰) کال کې تأسیس شوی دی.
- د انجنیری پوهنځي، په ۱۳۳۷ کال کې تأسیس شوی دی.
- د کرنې پوهنځی په (۱۳۳۵) کال کې تأسیس شوی دی.
- د اقتصاد پوهنځي، په (۱۳۳٦) کال کې تأسیس شوی دی.
- د ښوونې او روزنې مؤسسه، په (۱۳۳۳) کال کې تأسیس شوی ده. چې وروسته په (۱۳٤۱) کال د ښوونې او روزنې پوهنځی شو.
- د فارمسي پوهنځي، په (۱۳۳۸) کال کې تأسیس شوی دی.
- د وترنری پوهنځي، په (۱۳۳٦) کال کې تأسیس شوی دی.
- د ځمکپوهنې پوهنځي، په (۱۳۵۹) کال کې تأسیس شوی دی.
- د ژورنالیزم پوهنځي، د تأسیس کال (۱۳۵۹).
- د ټولنیزو علومو پوهنځی، د تأسیس کال (۱۳۵۹).
- د هنرونو پوهنځی، د تأسیس کال (۱۳۵۹).
- د ادبیاتو او بشري علومو پوهنځی، د تأسیس کال (۱۳۲۲).

د پيداگوژي انستيتوت هم بيل بيل پوهنځي درلودل: د بهرنيو ژبو، ادبياتو، تاريخ او جغرافيې پوهنځي، په پوهنتون کې د شپې پوهنځي هم موجود و چې په دې وروستيو وختو کې شاگردان نه لري.

د کابل پوهنتون محصلين په (۱۳۵٦) کال کې (۸۷۰۰) تنه او په (۱۳۵۷) کال کې (۱۰۰۵۲) تنه وو.

- په (۱۳۵۸) کال (۱۲٤۲۲) تنه محصلان او په سلو کې ۵۰ نجونې.

- د کابل پوهنتون استادان په (۱۳۵٦) کال کې (۸٦۰) تنه او په (۱۳۵۷) کال کې (۹۰۹) تنه.

- په (۱۳۵۸) کال کې (۸٤٤) استادان.

خو په راتلونکو کلونو کې د غه کميت بدلون وموند.

په (۱۳٦۸) کال کې د روزنيزو مؤسسو محصلان:

- کابل پوهنتون ۸۷۵٤ محصلان په سلو کې ٤۰ نجونې.

- د شپې پوهنځي ۷۳۵ محصلان په سلو کې ۲۰ نجونې.

- اسلامي پوهنتون ۳۹۷ محصلان، (۱۳٦٦) کال.

- د پولي تخنيک انستيتوت (۲۰۲٤) محصلان، په سلو کې ۲۰ نجونې.

- د طب دولتي انستيتوت ۲۸۸۷ محصلان، په سلو کې ۲۵ نجونې.

- د پيداگوژي انستيتوت ۲۳۰۹ محصلان، په سلو کې ۲۵ نجونې.

اوس د کابل پوهنتون د استادانو شمير (۳۹۰) تنو ته رسيږي او په همدې ترتيب په نورو علمي مؤسسو کې د شاگردانو ښوونکو او استادانو په شمير کې د کتنې وړ کمښت ترسترگو کيږي. او په تشکيلاتي لحاظ هم اسلامي پوهنتون د شرعياتو په پخواني پوهنځي تبديل شو.

له ۱۳۶۹ کاله را په دېخوا د کابل پوهنتون کله بیرته (خلاص) او کله تړلی و، ځکه چې د کابل داخلي جګړې د هغه د مزاحمت سبب وې. د ۱۳۷۵ - ۱۳۸۰ کلونو ترمنځ د ښځو روزنه او د ښځینه و کار طالبانو تحریم کړ او پوهنتون له خپل اکاډمیک حیثیت څخه ووت. هیله ده چې د غه تولې نیمګړتیا وې او ویجاړتیا وې جبیره شي، د کابل او افغانستان اداري خپل مدني او معاصر حالت بیا ترلاسه کړي. له نیکه مرغه د ۱۳۸۰ کال له جدی نه را په دېخوا د دولت د اعلان له مخې ټول هغه نارینه او ښځینه کارکوونکې چې د طالبانو په وخت کې له دندو (وظیفو) څخه ګوښه کړای شوي وې، بیرته یې خپلو دندو ته دوام ورکړ او ښځینه ښوونځي بیا راژوندي شول او ښځینه طبقې بیرته د پخوا په شان پر تدریس، ښوونې او روزنې او خپلو اداري چارو پیل وکړ.

## پنځم څپرکی

# د کابل ښار دوګړو شمیر

د کابل ښار دوګړو شمیر په بیلا بیلو پیړیو کې د یادونې وړ بدلونونو او زیاتوالي سره مخامخ شوی دی. د کابل شاهانو له حکومت څخه مخکې د اوسنیو ده افغانانو په برخه کې یوه ستر زراعتي کلي ته ورته (مشابه) له پنځه سوه تنو څخه زیات اوسیدونکی نه لرل، خود کابل شاهانو په وخت کې یې د یوه سیاسي اونظامي مرکز په توګه څه د پاسه پنځوس زره تنه وګړي لرل. د بابر او تیمور شاه دواکمنۍ په کلونو کې یې هم له سلوزرو تنو څخه زیات وګړي نه لرل. د محمد ظاهرشاه د حکومت په زمانه کې ښار پراختیا وموندله او د ښاري وګړو شمیر د ښار په پرتله زیاتوالی وموند او خلکو له کلیو او بانډو څخه ښار ته مخه وکړه د ښاري ماستر پلان له مخې په ۱۳۴۳ هجري لمریز کال کې د کابل ښار دوګړو شمیر درې سوه شپیتوزرو تنو ته او په ۱۳۵۸ کال کې نهه سوه یو دیرشو زرو تنو ته لوړ شو. د ۱۳۶۹ هجري لمریز کال په سرشمیرنه کې د کابل ښار دوګړو شمیر ۱,۵۶۲,۴۰۰ تنه او ۲۳,۶۰۰ کورنۍ محاسبه شوي وې، خو د ۱۳۷۵ هجري لمریز کال د احصایې له مخې د کابل ښار ۲,۰۴۲,۲۰۰ تنه اوسیدونکي لرل او د کورنیو شمیرې ۳۰,۸۴۹ ته رسیده. په داسې حال کې چې په جنوبي ساحو کې یې د ښار ناحیې یو څه ویجاړې شوي دي، خو د

وروستیو دوه نیمو لسیزو جګړو له امله یوزیات شمیر خلکو له ګاونډیو ولایتونو او د ښار له شاوخوا سیمو څخه کابل ته مخه کړې ده. او د ښار دوګړود شمیر د زیاتوالي سبب شوی دي، خو د کابل اصلي او ښاري اوسیدونکو یوې برخې مهاجرت وکړ او له خپلو اصلي ټاټوبو څخه ووتل، خو سره له دي هم له شاوخوا سیمو څخه دوګړو په راتګ سره د ښاري اوسیدونکو شمیر لا پسې زیات شو.

ژبه: د هیواد په مرکز او ولایتونو کې د دولت رسمي ژبې پښتو او دري دي.

مذهب: د کابل خلک په غوڅ اکثریت سره مسلمان او حنفي مذهبه دي. خو د شیعه مذهب پیروان هم پکې شته. همدارنګه د هندوانو لږ کی هم په کابل کې ژوند کوي.

نژاد: د نژاد له پلوه د کابل خلک زیاتره آریایان دي چې د هندوکش د جنوب په دروکی میشت او ځای پر ځای ؤ او د کابل خلک هم همدوي وو.

## دوګړو د شمیر زیاتوالی:

په زاړه ښار (چنداول، شوربازار او لاهوری دروازه) د ده افغانانو په ځورو له دهمزنګ څخه د مرغابیانو د ډنډ په امتداد ترقول آبچکان پورې په هر کور او حویلی کې له لسو څخه تر پنځلسو پورې، دغه راز په قلعهء موسی، قلعهء شاده، بره کې او شهرآرا کې له پنځو څخه ترلسو تنو پورې او یا کله نا کله له دې څخه زیات ژوند کوي.

دورځې په اوږدو کې له پل باغ عمومي څخه تر پل خشتي، ستر پلورنځي، نادر پښتون واټ تر سپاهي گمنام (نوم ورکي سرتيري)، د ميوند واټ په اوږدو کې، د ابن سينا تر روغتون پورې او له دغه ځای څخه تر شاه دوشمشيره (ع) او ده افغانانو کې، د زرنگار پارک په شاوخوا، مرکزي منډوي، باغ قاضي او چنداول چې زيات وخت د تگ راتگ لاره پکې نه وي، آسمايي واټ، سالنگ واټ، د پارک سينما د دواړو غاړو بازار، تايمنی، دهن باغ، د پروان مينې دويمه څلور لارې، د پروان مينې عمومي مارکيټ، د مريم ليسې واټ او د نجارانو قلعه، ډيرې گڼ ميشتې دي خو په نورو ښاري ناحيو کې په متناسب او انډوليز ډول يعنې په هر کور کې په منځنۍ ډول له پنځو تنو څخه تر شپږو تنو پورې ژوند کوي.

## په کابل کې تلگراف:

کابل په افغانستان کې لومړنی ښار دی چې سيم لرونکي او بې سيم تلگراف پکې ځای پر ځای شو او د استفادې وړ وگرځيد. د افغانستان د خپلواکۍ له ترلاسه کولو مخکې د امير حبيب الله خان په وخت کې سفري بې سيم، تلگراف له مارکوني کمپنۍ څخه کابل ته راوليږدول شو چې د هغه په واسطه له کابل څخه پغمان او جبل السراج ته مخابره کيده. په ۱۲۹۹ هجري لمريز کال کې د اوږدې څپې لرونکي بې سيم، تلگراف دوه دستگاوې چې يوې يې پنځه کيلو واټه قدرت او بلې يې دوه کيلو واټه قدرت درلود، د عسکري مخابرې له پاره کابل ته راوليږدول شوې، وروسته په ۱۳۱٤ هجري لمريز کال کې د اووه سوه او پنځه سوه کيلو واټه قدرت د لنډې څپې اووه تلگرافي او

تیلفوني دستګاوې په افغانستان کې په کار واچول شوې چې هغه هم د مارکوني کمپنۍ له خوا برابرې شوې وې او په کابل، هرات، مزارشریف، میمنه، دایزنګی او خوست کې ودرول شوې. د کابل دستګاه په دریو ځایونو کې انتخاب شوه. مرکزی دفتر د پل باغ عمومي په مرکزي پسته خانه استوونکی یې په یکه توت او اخیستونکی یې په مهتاب قلعه کې چې دری واړه منابع ترځمکې لاندې کیبلونو په واسطه سره نښلول شوې وې.

په ۱۳۳۱ هجری لمریز کال کې فرانسوی کمپنی (S.F.R) ته د تلګراف د اوو دستګاو د برابرولو سپارښتنه وشوه چې د غه دستګا وې په ۱۳۳۵ هجري لمریز کال کې کابل ته راولیږدول شوې او د هغو له جملې څخه یوه دستګاه یې په کابل کې ودرول شوه او په ۱۳۳۷ هجري لمریز کال کې یې په عملي توګه په کار پیل وکړ. له بده مرغه د غه دستګاوی دوروستیو دوه نیمو لسیزو د جګړو له امله زیانمنې شوې، فعالیتونه یې محدود شول او ټولې یې اوس بیا رغاونې ته اړتیا لري.

## د کابل په ښار کې تیلفون:

په کابل کې لومړنی تیلفوني مخابره په ۱۳۱۷ هجری کال کې د سردار حبیب الله خان له کور څخه چې د پخواني مشرانو جرګی په ودانۍ کې میشت ؤ، په پخوانی زین العمارت کې د سردار نصرالله خان کورته وشوه. د سراجیه حکومت په اووم او اتم کال کې د تیلفون یومزی له کابل څخه تر جلال آباده پوری وغزول شو اوله هغه وروسته د جلال آباد او پغمان ترمنځ د تیلفون یومزی وغزول شو.

وروسته د امان الله خان د حکومت په دوران کې یو پنځه ویشت لینه سوچبورډ په ارګ کې ودرول شو. له هغه وروسته یو پنځوس لینه سوچبورډ په شاه دوشمشیره (ع) کې ودرول شو او کرار کرار پراختیا ورته ورکړ شوه. په ۱۳۰۹ هجري لمریز کال کې پرمختیایي ګامونه واخستل شول او په ۱۳۱۲ هجري لمریز کال کې د یو سلو شلو مزو په ظرفیت یو کیبلي سوچبورډ په کابل کې په کار پیل وکړ او نور مزي هم ورزیات شول. دغه مزي ټول ترځمکې لاندې کیبلونو په واسطه سره نښلول شوي وو، د کیبلونو مرکز د پست د وزارت په مرکز، د بهرنیو چارو په وزارت، د حربیه چارو په وزارت او په ځینو نورو ادارو کې تنظیم شوي وو. او دهوايي سوچبورډ مرکز د ښاري پسته خانې په مرکز، قوای مرکز، سیاسنګ او په ځینو نورو سیمو کې ځای کړای شوي ؤ. خو د ۱۳۴۰ او ۱۳۴٤ کلونو په بهیر کې په کابل کې د تیلفون شبکې پراختیا ومونده او د تیلفون نمرې له شلو زرو څخه پیل او په یو او یا زره پای ته ورسیدې. که چیرې د ښار مرکز د ګذر ګاه د ناحیې، زرنګار پارک او دارګ له شاوخوا څخه په پام کې ونیسو، په دغو ساحو کې ټولې نمرې په شل زري تنظیم شوي دي، د آسمايي واټ د شمال، شمال لویدیځ او شمال ختیځ په استقامت دیرش زری نمرې د آسمایی د جنوب، جنوب لویدیځ او جنوب خیځ په استقامت څلویښت زري نمرې، د څرخي پله د صنعتي پارک په ګډوون، مکروریانونو او دهغو په ګاونډیو ناحیو کې شپیته زري نمرې او په خیرخانه کې او یا زري نمرې تنظیم او تاکل شوې دي چې د دغه واقعیت پرېنسټ ښاري جکشنونو کې هم مطالعه کولای شو.

لومړي جکشن په هارتن پله کې په شل زري نمرو سره.

دوهم جکشن په شیرپور کې په دوه ویشت زرې نمرو سره.
دریم جکشن په دهمزنگ کې په څلویښت زرې نمرو سره.
څلورم جکشن په ده بوري کې په څلویښت زرې نمرو سره.
پنځم جکشن په کارته ء پروان کې په درې دیرش زرې نمرو سره.
شپږم جکشن په دارالامان کې په څلویښت زرې نمرو سره.
اووم جکشن په ننداري تونونو کې په شل زرې نمرو سره.
اتم جکشن په خوشحال مینه کې په څلویښت زرې نمرو سره.
د مکرور یانونو جکشن په یو شپیته زرې نمرو سره.
د خیرخانې جګشن په یو اویازرې نمرو سره.
د پلچرخې صنعتي پارکونو جکشن په شپیته زرې نمرو سره.

په دې وروستیو وختو کې په کابل کې ډیجیتل تیلفونونه ویشل شوي او په کار اچول شوي دي. دغه راز په ځینو غیر دولتي مؤسسو او د ملګرو ملتو په سازمان پورې په مربوطو دفترونو کې ماهواره یې (د سپور مکیز تیلفونونه) او شخصي مخابروی تیلفونونه هم په فعالیت کې دي چې له بهرنیو هیوادونو سره په ښه توګه خپل ارتباط تأمینولای شي.

برسیره پُر دې، تاکل شوي ده؛ موبایل تیلفونونه چې له شخص سره ملګری دي او هر ځای ته د لېږدونې وړ دي او له هر ځا یه څخه چې وغواړي د مقابل لوري له موبایل سره ارتباط ونیسي، په کابل کې مروج شي.

دا وسني دولت په مرستې سره د انټرنټ Internet او e-mail د مخابروي شبکې د ځای پر ځای کولو امکان شته او هم د مخابرې او د هغې د اطلاعاتو لارې چارې هم په ښه توګه برابرولی شي، .چې باید په مخابراتي بیارغاونه کې په پام کې ونیول شي.

مشهور ځایونه (اماکن معروف):

**مشهور جوماتونه:** په کابل کې لومړنی جومات د شاه دوشمشیره (ع) جومات دي. چې د شاه دوشمشیر (ع) (حضرت لیث علیه الرحمه) د مقبرې ترڅنګ دي چې د عبدالرحمن بن اشعب په امر په (۷۰۰) میلادي کال کې جوړ شوی دی.

- د پلخشتي جومات چې د شاه شجاع له خوا جوړ شو.
- سپین جامع جومات د تیمور شاه په لارښوونه ودان کړای شو.
- د بالاچوک د جومات د بنسټ ډبره د بابر شاه له خوا کېښودل شوه.
- حضوري چمن ته مخامخ ورزشي لوبغالي د لویدیځ په استقامت د عیدگاه جامع جومات.
- نوي ښار کې د حاجي یعقوب جامع جومات.
- د شاه بو بوجانې جامع جومات.
- د لومړی مکروریان جامع جومات او د دریيم مکرویان جامع جومات.
- د وزیر محمد اکبر خان جامع جومات او د وزیر محمد اکبر خان روغتون ته څیرمه بل جومات.
- د شاه شهید (علیه الرحمه) جامع جومات او د اتفاق جومات.
- د ده بوریو او د لومړي سرک جامع جومات، د دریمی کارتې جامع جومات او د شیر شاه مېنې جامع جومات.
- د باغ بالا، پروان مینی او د بهارستان جامع جوماتونه.
- د خیرخاني مینی په لومړی، دوهمه او دریيمه برخه کې د حضرت علی (رض) او د سرور کائنات جامع جوماتونه.

په پارک زرنگار کې نوې جامع جومات

په کابل کې څه د پاسه دری سوه پنځوس جامع جوماتونه شته چې د صحابه کرامو او د خلفای راشدین په نومونو یاد کړای شوي دي.

برسیره پر دې یو لړ تکیه خانې او جماعت خانې هم شته:

- د چنداولو عمومي تکیه خانه.
- د اسماعیلیه جماعت خانه
- د حسینیې تکیه خانه
- د جعفریې تکیه خانه
- د فاطمیې تکیه خانه
- د افشارو د قایمیی تکیه خانه
- د افشارو عمومي تکیه خانه
- د قلعه ء شهادې تکیه خانه
- د محمدیه مدرسه

په جوماتونو او تکیه خانو کې د جماعت لمونځونه، د جمعې لمونځ، د اختر لمونځ د مذهبي شؤنو په رعایتولو سره ادا کیږي. د کابل په مرکز کې د پل خشتي جومات مرکزي اهمیت لري په خیرخانه کې د حضرت علي جومات زیاتره د جمعې په ورځو او اخترونو کې او یا د فاتحې اخیستلو په مراسمو کې ګڼ میشت دي او د استفادې وړ ګرځي.

د نوي ښار په پارک، سید نور محمد شاه مینه، څلورمه کارته او خیرخانه کې د ښځو له پاره هم د فاتحې اخیستلو کلو پونه په پام کې نیول شوی ؤ چې د استفادې وړ هم ګرځیدلی و ؤ.

## زیارتونه:

د کابل شاهانو او د بودیزم مذهب د له منځه تللو وروسته؛ افغانستان په مجموع کې او کابل په خاصه توګه د شهیدانو، صحابه کرامو او د مخورو مذهبي شخصیتونو درناوی کړی دی او زیارتونو ته یې د متبرکو زیارتونو په توګه د قدر په سترګه کتلي او درناوی یې کړی دی چې د سترو او مهمو زیارتونو نومونه اخلو:

ظهیرالدین بابر په تزک بابري کې لیکي: د خواجه صفا ساحې په ګاونډ کې د یوې چینې پر سر د خواجه شمسو مزار او په بله چینه کې د خواجه خضر (ع) قدمګاه دی. یوه بله چینه د خواجه عبدالصمد په مقابل کې ده چې د خواجه صفا په نامه مقبرې په نېږدې درې سوه متری لوړوالی کې د شیر دروازې د غره په شمال ختیځ لمن کې د خواجه روښنایی په نامه یوه مقبره شته چې د پسرلي په فصل کې ارغوان غوړېږي د شیدوچایو په میلې سره زیات شمیر مراجعین لري. یو شمیر کسان وایی چې خواجه صفا او خواجه وفا چې اوس د خواجه روښنایی په نوم شهرت لري د خواجه صفا د غره په لمن کې د خواجه صفا له مقبرې څخه د دوه سوه مترو په واټن ښکته په یوه کوچنۍ ډبرینه ګونبزه کې دي او قبر یې لوحه نه لري دهغو صحابه وله لښکرو څخه دي چې د کابل د فتحې په وخت کې شهیدان شوي دي.

ځینی کسان وایی چې خواجه روښنایی (خواجه صفا او خواجه وفا) د هماغو اسلامي لښکرو ډیوې . ځني نور وایی چې دواړه شخصیتونه د جابر بن شیخ زید زامن دي.

ددغې ساحې ودانۍ په ۱۳۲۲ هجری قمری کال کې د امیر حبیب اللهّ خان په زمانه کې جوړې شوې دي.

په شور بازار کې د بابای خودی علیه الرحمه او د موی مبارک زیارت هم متبرک اماکن معرفي کوي.

په کابل کې په همدې ساحه کې د تمیم انصار او د جابر انصار مقبرې هم شته. د بالاحصار د جنوب په لور شهدای صالحین، په شاه شهید کې د شاه شهید زیارت، په مراد خانیو کې د حضرت عباس زیارت، د عدلیې وزارت ته څېرمه د فروشگاه په سیمه کې د بابا کیدانی زیارت، د قلعه فتح الله د شهید په څلور لارې کې یو پخواني متبرک زیارت او دغه راز په کارته پروان کې سرک ته څېرمه متبرک زیارت، د باغ بالا په غونډۍ کې د پیربلند زیارت، په جمال مینه کې د سخي زیارت، په ده بوریو کې د افغان او انگلیس د دویمې جگړې د شهیدانو زیارت، په اونچي باغبانانو کې د قطب حیدر زیارت، د قرغې په لویدیځ کې د خواجه جم زیارت، خواجه مسافر ولي، خواجه لکن، شاه نعمت الله ولی، خواجه عبدالواحد، حضرت چهلتن، په کلای قاضی کې د شاه آقا زیارت، خواجه دریا آباد، خواجه المائی او جوان مرد قصاب، په ارغندی کې زیات شهرت لري.

په همدې ترتیب په دارالامان کې د ابو الشاه دیوال سوار زیارت او د خواجه اسدالله شهید زیارت د کابل د شمال په ده یحیی کې، د یحیی صاحب مقبره، په پاچا صاحب مشهور شیخ زیور الدین، په حاجی صاحب کلا کې په شور عشق مشهور د شیخ سعد الدین انصاري مقبره او د خواجه چاشت ولي مرقد هر یو د زیات ارزښت او درناوي وړ دي.

## مهمې مقبرې:

۱- د مرنجان غونډۍ لپاسه د اعلیحضرت محمد نادرشاه مقبره په ښکلې ډول جوړه شوې ده چې په وروستیو جګړو کې زیانمنه شوې ده او خپله لومړۍ ښکلا یې له لاسه ورکړې ده، هغې ته ثیرمه د شاهي کورنۍ او د عامه خلکو د یو زیات شمیر مړو مقبرې د هغې د شمال په استقامت کې شته.

۲- د اعلیحضرت تیمور شاه مقبره چې ښکلي ګونبزه یې د شاه دوشمشیره (علیه الرحمه) په جنوب ختیځ کې تیمور شاهي پارک ته ثیرمه او د کابل د سیند په جنوب کې جوړه شوې ده.

۳- د امیر عبدالرحمن مقبره، د زرنګار پارک په شمال ختیځه څنډه او د ارګ په جنوب لویدیځ کې موقعیت لري چې د کابل مرکزي زړې جوړوي.

## تفریح ځایونه:

د شیر دروازې د غره په شمال کې د خواجه صفا سیمه، د ګذرګاه په جنوب کې د بابر بڼ او د کابل په جنوب لویدیځ کې د دارلامان بڼ، د تاج بیګ غونډۍ، د چهلستون ماڼۍ او د چهلستون بڼ د کابل د خلکو د ښکلو تفریح ځایونو له جملې څخه شمیرل کیږي.

پغمان په مجموع کې او په ځانګړې توګه د پغمان عمومي بڼ، د پغمان غونډۍ، د سردار محمد داود خان بڼ او د پغمان د پیر بلند سیمه ،د دوبي په موسم کې ډیره معطره او زړه وړونکې ده.

د کابل په لویدیځ کې وچې درې ته نږدې د ژمني سپورت په نامه د بهرنیو او کورنیو سکي لوبغاړو له پاره یو ځای برابر شوی ؤ چې په وروستیو دوه نیمو لسیزو کې له هغه څخه کار نه دی اخیستل شوی.

د کابل په ختیځ کې د شیوه کیو او دبګرامیو سیمې د میلې ځایونه او د توتانو د خوړلو له پاره د خلکو دویني تفریح ځایونه دي چې د امنیت د تأمین په صورت کې له د غو سیمو و څخه په ښه توګه کار اخیستل کیدای شي.

د کابل په شمال کې کاریزمیر ښکلی، شین او سمسور ځای دی چې د کابل او د هغه د شا و خوا سیمو د خلکو د وبني تفریح ځای دی.إستالف پرتمین تورستیکې ځای او د دوبي په فصل کې د خلکو د میلې سیمه بلل کیږي برسیره پردې د ژمي په موسم کې د ماهیپر دره او د نغلو او سروبي ساحې په زړه پورې او زړه وړونکې طبیعی منظرې لري او هر کال په ملیونونو تنه دغه ښکلې سیمې ګوري.

## د کابل په ښار کې دو دونه او رواجونه:

د کابل ښار او ولایت خلکو تل هڅه او هاند کړی دی چې خپل کلتوري او ټولنیز دودونه، عنعنات او رواجونه وساتي، د مثال په ډول د کابل په مربوطو کلیو کې نوی کال دنیا لګیو په ایښودلو، د ځمکو په یوي کولو (قُلبه کولو)، دغوایانو په ښکلی کولو او د ټوپونو په وهلو سره نمانځل کیږي.

په نوی کال کې د سمنکو پخول د ښځو ستره میله ده.

د نویو زیږیدلو ماشومانو د نومونو د ایښودلو له پاره شب شش، «شپږمه شپه» د ماشومانو سنتول، اووه خیشتي میوی (هفت میوه) هفت سین، د چهار شنبې د ورځو نذر او زیارتونو ته تلل د کابل ښار او کلیو د خلکو له منل شویو دو دونو څخه دي ښځې له ستنی ګنډلو (سوزن دوزی) سره زیاته مینه لري.

د کابل په ښار کې نوی کال د جُبی په میلې او په جمال مینه کې د سخي (کرم الله وجهه) زیارت او په سیاه سنگ کې زیارت ته په تللو سره نمانځي.

د کور پیغلې د هلک د أستازي (د هغه د مور، خور، او یا نورو خپلوانو) په غوښتنه د پیغلې پلار او یا نور خپلوان یې کوژدن کوي.

کوژده، په پښه ارته «پای وازی» او دواده په مراسمو کې خپلوانو او دوستانو ته د ډیرې لگښتي دوډۍ برابرول، د کابل ښار او د مربوطو سیمو د خلکو له رواجونو څخه دي.

د کابل ښار په شاوخوا سیمو کې د گډیانو فوج جنگول او کله نا کله د زرکانو او چرگانو جنگول هم د کلیوالي خلکو د ودونه دي. د کابل په ښار کې د کاغذ پران لوبه په دودیز ډول د تنکو ځوانانو مشغولتیا ده.

د مړي په مراسمو کې دریمه ورځ، د جمعې شپه، څلویښتي او د کال تلین د مړي د خپلوانو له پاره یو لگښتي دود او رواج دی. د میراث موضوع چې شرعي حکم دی ځینې کسان یې د دود په توگه لونړو (لورگانو) ته هم ورکوي. د میرمنو له خوا د کور د کارونو تر سره کول او د پلار له خوا د کورنی د لگښتونو برابرول، لرغوني او منل شوی دود دی. د کورنی یووالې د پلار په مشری تامینیږی.

د زیاتو ماشومانو او په تیره بیا د زوی لرل د کورنیو هیله ده، خو په ښارونو کې د زده کړې خاوندانو ملاماتوونکي او خرافاتي رواجونه یو څه لږ کړي دي او په کلیو کې دغه شان دودیز چال چلندونه خوندي دي.

د ارغوان ترڅنگ د خواجه صفا میله او د سپرلي په لومړیو وختو کې د شیدو چایو برابرول او د منډوي د جنډې پورته کول ښاریانو ته د نوي کال نیک فال بلل کیږي.

په کليوالی د ودونو کې زوم په آس سپرېږی او له دهل او سورنای سره له خلکو سره يوځای د نا وې د راوستلو له پاره ځي او ناوې په ډولی او ياد آس په سپرلی، د زوم کورته بيا يي.

## د کابل په ښار کې د ترافيکو دوران:

په کابل کې ښاري ترافيک په تيرو وختونو کې داسی وو چې د ښار له پلان سره سم او دوګړو د شمير له مخې د هماغې زمانې حکومتونو هلې ځلې وکړې چې د امريکا له متحده ايالاتو، هند، ايران او بلغاريا سره په تماس کې شي او د ښاري سرويسونو د شمير له پلوه له کابل ښار سره مرسته وکړي هماغه وو چې له ۱۳۲۵ کال وروسته يو شمير امريکايي سرويسونه کابل ته راولېږدول شول او د دارالامان، مهتاب قلعه، کابل او د نوی ښار په تګ لور وکی يې کارنده ونډه لرله او په ډيرې ټيټې کرايې يعنی له پنځه ويشتو پولو څخه تر پنځو سو پولو پورې او وروسته په يوې افغانۍ ښاريان له يوې سيمی څخه د ښار د مرکز پل باغ عمومی ته او له دغه ځای څخه د ښار شاوخوا سيمو ته لیږدول. البته دولت د کرايې په سبسايډي (تخفيف) کې د لیږدونو (ترانسپورت) رياست له لاری هم ونډه اخيستله.

شخصي او انفرادی سرويسونه هم موجود ؤ، البته په نامنظم ډول او په نسبی ډول په زياتی کرايی سره د خلکو په لیږدونه کې همکاري کوله. کوچنی ګړنديی موټرونه دومره زيات نه وو، بلکې بګی «ګاډی» هم د اشخاصو لیږدونې په لاره کې د خلکو په خدمت کې وې چې وروسته د سرويسونو په زياتوالي سره په ښار کې د ترافيکو له دوران څخه لرې کړای شوې. يوازې د

ښار په شاوخوا سیمو کې دغه دوه ځرخه عرادې له آسونو سره د استفادې وړوي. له ۱۳٤۰ هجری لمریز کال وروسته د ښاري ترافیکو دا صلاحاتو په لاره کې زیاتې هلې ځلې وشوې دولت هڅه وکړه چې ښار پراختیا ومومي او له دې سره جوخت ترافیکي وسایل ښه والي ومومي، هماغه وو چې یو شمیر ښاري ټکسیانو په کار پیل وکړ او هغه ښاري سرویسونه چې له هند څخه پیرودل شوي وو په بیلا بیلو ښاري استقامتونو او تګ لوروکې په کارواچول شول.

د محمد داود د جمهوري ریاست په دوران کې له بلغاریا سره د برقي سرویسونو قرار داد وشو او د لینونو د تمدید شبکې یې د میرویس میدان، پل باغ عمومي او له پل باغ عمومي څخه په حلقوي ډول د سالنګ واټ، آریانا کارتې او باغ بالا له لارې ترمیرویس میدانه پورې دوام ومونده چې د خلکو د تګ راتګ له پاره ډیر مساعد او ګټوروه. یو عمومي تم ځاي کې په خوشحال مینه کې سیلوته مخامخ، دوهم تم ځاي یې په پل باغ عمومي کې او فرعي تم ځایونه یې د لارې په اوږدو کې و.

برقي سرویسونو له پامیر سینما څخه د میوند واټ په استقامت تر سید نور محمد شاه مینې او بګرامیو پورې هم تګ را تګ کاوه. د وروستیو دوه نیمو لسیزو جګړو له امله برقې سرویسونه له منځه لاړل او برقي شبکو او دهغو برقي مرکزونوته زیات زیان ورسید او یوازې له منځه تللي اغیزي یې تر سترګو کیږي چې بیا جوړونه یې د زیاتې بودجې غوښتنه کوي.

ښاري سرویسونو لوټ کړاي شول او یو شمیر یې بهرته ولیږدول شول او یو محدود شمیر په ترمیم وړ حالت کې په ملې بس کې پاتې شول چې په دې وروستیو وختو کې له ترمیم وروسته له هغه څخه بیرنۍ ښاري استفاده کیږي.

خو له ۱۳۵۷ هجري لمریز کال څخه مخکې د یرشو زرو شخصي او رسمي سرویسونو او څلور زره دوه سوه شلو ټکسیانو په کابل کې فعالیت کاوه چې وروسته وروسته دغه شمیر کم شو.

## د کابل ښار ترافیکي شریانونه:

د ۱۳۵۷ هجري لمریز کال له ماستر پلان سره سم کابل ښار زیاته پراختیا وموندله له دې امله ترافیکي شریانونوهم د خلکو له اړتیا و سرسم زیاته پراختیاو موندله. شخصي لیږدوونکي وسایط ګرندي موټرونه، میني بسونه او نیمه بسونه، په زیات شمیر سره د ښاري ترانسپورت د تګ را تګ له پاره د استفادې وړ وګرځیدل چې تګ لوری یې په دې ډول بیانوو:

## ۱ – د کابل ښار په لویدیځ کې ترافیکي شریانونه:

– د پغمان په دوه سرکه کې له کمپنۍ څخه د عمومي سړک په استقامت تر میرویس میدان پورې اوله دغه ځای څخه د باغ بالا د غاښې، کارتهٔ پروان، آریانا کارتې، مارکیټ او سالنګ واټ په استقامت تر ده افغانان پورې.

– د قمبر له څلور لارې او د قرغې له بلاکونو څخه د پولیتخنیک، د باغ بالا د غاښې، کارتهٔ پروان او د سالنګ واټ په استقامت تر ده افغانانو پوری.

– د دشت برچي د پُل خشک له ساحې څخه تر مهتاب قلعه، پل سوخته، سراي غزني (غزنوی مېنه) د پل سرخ څلور لاری، خواجه ملا، د دارالامان سړک د دهمزنګ له لارې د هارتن تر پله او پامیر سینما پورې.

– د چهاردهی له چهار قلعه، قلعهٔ شهاده، پل سوخته د غزنوي مینې

له لارې د پل سرخ تر ځلور لارې خواجه ملا - د دارالامان سړک، دهمزنګ د هارتن پل تر پامیر سینما پورې.

- له دارالامان څخه د دارالامان سړک په امتداد تر پامیر سینما پورې.

- لــه ده افــغانانــو څــخه، واصــل آبـاد، ګذرګاه، هــارتل پــول تر پامېر سېنما پورې.

- له کابل پوهنتون څخه د جمال مینې په سړک، دهمزنګ، هارتن پول تر پل باغ عمومی پورې.

- لـه مېروېـس مـیدان څـخه د شـېر شاه میـنـې د سړک، بریکوټ (د همزنګ) او د هارتن پله په امتداد تر پل باغ عمومي پورې.

## ۲ - د کابل ښار د شمال ترافیکي شریانونه:

- د خیرخانې مینې له لومـړی بـرخې څـخه د شـمالي سـرای له لارې د خشت هو ختیف تر ځلـور لارې پـورې د دوهم پـروان په تګ لـورې کې تر ده افغانانو پورن.

- د خېر خانې مینې دوهمه برخه د ده افغانانو او د خشت هو ختیف د ځلور لارې ترمنځ د مریمې لیسې د سړک تر ګولایې پورې.

- د خیر خانې مینې دریمه برخه د کارګری قصبې په ګډون له ده افغانانو څخه د لب جر د سړک له لارې تر قصبې پورې.

- د تایـمنیو د پروژی پـه تګ لـوری کې له ده افغانانو څخه د سالنـګ واټ په امـتداد د تایمنـي واټ پـه استقامت د سرور کاینات جومات تر ګولایي پورې.

- د بی بی مهرو په تنګ لوری د هوايي ډګر د سړک له لارې د مراد خانیو له تم ځای ځخه.

- د دوهم، دریم او څلورم مکروریان په تنګ لوري کې د افغان ستر پلورنځي او یا د مراد خانیو له تم ځایونو ځخه تر څلورم مکروریان او بي بي مهرو پورې.

## ۳- د کابل په ختیځ کې ترافیکي شریانونه:

- د ښار د مرکز او د نوی کارتې ترمنځ: د نوم ورکی سرتیری (سپاهی گمنام) تم ځای ځخه د شاه شهید (علیه الرحمه)، رحمن مینې او سید نور محمد شاه مینې په امتداد، تر یک لنګه غاښي «کوتل یک لنګه» پورې او کله نا کله هم تر بګرامیو او ارزان بیه پروژې پورې.

-د لومړي مکروریان په استقامت: د پلخشتی، فروشگاه بزرگ افغان او د مراد خانیو د ساحی ځخه تر لومړی مکروریان پورې په حلقوي ډول د شش درک له لارې د مکروریانو تر پله د مکروریانونو تر شاوخوا سیمو او وروسته د جلال آباد د اډې او د پل محمود خان سړک په امتداد.

- د زمانخان کلا په استقامت د مرنجان غونډۍ د شمال له ځوړو ځخه د قلعه ء زمانخان په استقامت د لومړي مکروریان او د زمانخان کلاد وروستی تم ځای ترمنځ.

- د هود خیلو او د صنعتي پارکونو په استقامت: د شش درک او مراد خانیو له سیمو ځخه تر صنعتي پارکونو، عمومي گمرک او پلچرخي پورې.

## ٤-د کابل ښار په جنوب کې ترافیکي شریانونه:

- دغه تنګ لوری د لاهوری دروازې او سیاه بیني ترمنځ امتداد لري او کلهٔ نا کله د سهار او ماښګر له خوا تر موسهي پورې یې هم ترافیکي تنګ لوری فعال وي. چهار آسیاب او ریشخور هم د سهار او ماښګر له خوا خپل ترافیکي تنګ لوري لري چې له همدې لارې جلا کیږي. دغه راز د ښار د شمال ترافیک د خیرخانې د غاښې له لارې د پروان له ولایت سره د ښار ختیځ ترافیک د صنعتي پارکونو له لارې له ماهیپر او ننګرهار سره نښلول کیږي. د لویدیځ ترافیک د کمپنۍ له لارې د میدان وردګ ولایت له سړک سره او د جنوب لار د سیاه بینی د لارې په واسطه د لوګر له ولایت سره یوځای کیږي خو د کابل ښار د ترافیکی دوران مرکز پل باغ عمومي دي.

## د تیلو ټانکونه:

په ښاري ترانسپورت کې د آسانتیاو د برابرولو په مقصد په بیلا بیلو سیمو کې د پټرولو، ډیزلو او دخاورو د تیلو ثابت ټانکونه جوړ شوي دي چې په ضروري وختونو کې ورځخه کار اخستل کیږي لکه:

- د زرنګار پارک د تیلو ټانک
- د نوي ښار پارک د تیلو ټانک
- د شاه شهید د تیلو ټانک
- د سیاه سنګ د تیلو ټانک
- د شهرآرا د تیلو ټانک
- د کارتهٔ پروان د تیلو ټانک

- د آریانا کارتې د تیلو ټانک
- د د همزنګ د تیلو ټانک
- د میرویس میدان د تیلو ټانک
- د خوشحال مینې د تیلو ټانک
- د مکروریانونو د تیلو ټانک
- د خیرخانې د غاښې د تیلو ټانک
- د دیوان بیګي د تیلو ټانک
- د باغ بالا د تیلو ټانک

## ترافیکي ستونزې:

څرنګه چې دولت په اوسنیو شرایطو کې په کافي اندازه ښاري بسونه په واک کې نه لري او انفرادي اشخاص په شخصي ډول لیږدوونکي وسایط په بېلا بېلو تګ لورو کې په کار اچوي او کرایه یې په خپله خوښه ټټبیتوی، ترافیک نه شي کولای چې د کرایې د ټاکنې لایحه کنترول کړي، له دې امله باید دولتي سرویسونه زیات شي.

د مازیګر، ماښام او ماخستن له خوا ښاري ترافیک، تکسیان او بسونه د خلکو په واک کې نه وي.

- په ګڼ میشتو ښاري ساحو، روغتونونو هوایي ډګر او د ښار په شاوخوا سیمو کې کرایې له انصاف څخه لرې دي.

- په سرویسونو، تکسیانو او مېنې بسونو کې ګڼه ګوڼه زیاته ده او د بسونو او تکسیانو په څوکیو کې له ښاري او ترافیکي نورم څخه زیات اشخاص کېښنوي او د ښاریانو د تکلیف سبب کېږي.

په ښاري سرویسونو کې باید میرمنو، سپین ږیرو او معیوبینو ته درناوی په پام کې ونیول شي. ځوانان اخلاقي او ملي وجیبه لري چې انساني کرامت په سربښندنې سره رعایت کړي.

- د ترافیکي شریانونو په تنگ لوری کې د افرادو د مصئونیت په خاطر باید د ترافیکو ریاست له مؤظفینو څخه گرځنده کنترولي ترافیک جوړ شي، چې مزاحم افراد او اشخاص سپرلیو او چلوونکو ته زیان و نه رسوي.

- تم ځایونه وټاکل شي او له گرځنده پلورونکو څخه خلاص شي او په معیاري ډول ترافیکي د سپلین تطبیق شي.

شپېږم څپرکی

# په کابل کې د صنایعو او تخنیک پرمختیا

د صناعتي تولیداتو او معاصرې تکنالوژي د ور پېژندلو لپاره، دولت هڅه وکړه چې په کابل کورنۍ پانګې اچونې تر سره شي، په دې برخه کې هم دولت او هم ملي سوداګرو همت وکړ چې په تولیداتو سره د خلکو ځېنې اړتیاوې لرې شي.

لومړنۍ صناعتي او تخنیکي دستګاه د کابل ماشینخانه وه چې د امیرشیر علي خان په وخت کې جوړه شوه او په هغې کې په محدوده توګه جنګي سامان آلات جوړېدل، خو د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې یې فعالیتونه او تولیدات زیات شول، ورپسې ورېښ تیوکران هم تولید شول چې د عسکري جامو لپاره ورڅخه کار اخستل کېده. دغې ماشینخانې د سهار له اوو بجو څخه کارپیل کاوه او د مازیګر په څلور بجو یې کارپای ته رساوه چې ټولو ښاریانو د خپل کار پیل او پای له هغه سره برابرا وه. دغه حربي ماشینخانه د علم ګنج په بڼ کې جوړه شوې وه.

امان الله خان غوښتل چې صناعتي ریفورم هم رامنځته کړي. خو بریالي نشو. مګر د محمدظاهر شاه د حکومت په لومړیو وختو کې په واصل آباد کې د ښېر دروازې په لوېدیځه لمنه کې د جنګلک د فابریکې په جوړولو سره د صنعتي

مجتمع ېو شمېر فابرېکو په کار پیل وکړ چې د موټر و تخنیکي سامانونه، بایسکلونه لرګین صنایع او طباعت په کې ترلاس لاندې نېول شوي وو.

له هغه وروسته د کابل په لوېدیځ کې داوسنۍ کمپني په برخه کې د پغمان په دوه لارې کې د بوټانو د ګنډلو او د صابون جوړلو ېو شمېر فابرېکي په پام کې ونېول شوې چې له بده مرغه هغو هم ونه کړای شول پراختیا ومومي او وروسته بیا له هغونه د دولتي ګدامونو په توګه استفاده وشوه.

د کابل په انکشاف سره هغې ته ورته صناعتي دستګاه په کار پېل وکړ او ملي سوداګرو د دولت په مرسته ځېنې دستګاوي جوړې کړي. د مثال په ډول په ۱۳۲۹ کال کې د (۹,٦۰۰,۰۰۰) افغانیو په پانګه د حجاري فابرېکې په خواجه ملاکي په کار پېل وکړ چي په سهامي ډول ېي سمنتي ډبري پر مرمرو او رخامو هوارې شوي ډبري او موبل فرنیچری په لوړه سطحه تولېدولې.

د بوټانو د ګنډلو او د ثرمني فابرېکې په ۱۳۳۰ کال کې د لس ملیونو افغانیو په پانګه او عمومي نساجی فابریکې په ۱۳۳۰ کال کې د ٤٦۲ ملیونو افغانیو په پانګه په کار پېل وکړ.

د کابل د بریښنا د تولید فابریکه په ۱۳۳۱ کال کې د (۲٤۰) ملیونو افغانیو په سهامي ډول په سروبي کې جوړه شوه.

د کـابـل د سـرویـس شـرکـت ورکـشـاپ پـه ۱۳۳۱ کـال کـې د (٤,۱۰٤,۰۰۰) افغانیو په پانګه په سهامي توګه.

د کابل ملي مطبعه په ۱۳۳۳ هـ ش کال (۱۵۰,۰۰۰) افغانیو په پانګه د کتابونو د چاپ له پاره.

د شـاګـرد چـېـنـي جـوړولـو فـابـریـکـه پـه ۱۳۳۵ هـ ش کـال د

( ۷,۷۰۰,۰۰۰ ) افغانیو په پانگه د چیني لوښود تولید په مقصد په همدې ډول په بیلا بیلو برخو کې زیاتې صناعتي فابریکې جوړې شوې چې په ۱۳٤٦ هـ ش کال کې د ښرخي پله په سیمه کې د صناعتي پارک په فعالېدو سره د ښار دننه او د صناعتی پارک په برخه کې د فابریکو شمیر ( ۱۲۰ ) دستگاو ته لوړ شو چې د جامو ، جاکټ ، بوټانو ، کیمیاوي سامان ، صابون ، کوښو ، شړیو ، تخنیکي او عمراني چارو ، گول سیخانو ، د موزائیک خښتو او سمنټو ، درملو ، د چاپ د چارو او نورو په شان د خلکو لومړنی اړتیاوی لرې کولې ، دلته یې څو نمونې وړاندي کوو:

## مرکزی سېلو:

په ۱۳۳۳ هـ،ش، کال کې د علي آباد د غره په لوېدېځ کې د مرکزي سېلو بنسټ کېښودل شو او له درېو کالو وروسته بشپړه شوه ، په ځلورویشتو ساعتوکي دغی سیلو د اوړو ظرفیت ۱۸۰ ټنه غنمو ، خو د کابل د خلکو اړتیا یې نه شواي لرې کولای ، نو دهغي ترڅنگ بله سیلو جوړه شوه .دغې دویمي دستگاه په ۲٤ ساعتوکې ۱۰۰ ټنه لومړی درجه اوړه او ۷۵ ټنه دویمه درجه اوړه تولېدول. د تهویې ، برېښنا او په گودامونو کې د غنمو د حرکت سېستم ټول په پام کې نېول شوی ؤ د سېلو تولېدات بازار ته دوه ډوله وړاندي کېدل: د سیلو تولیدات بازارته دوه ډوله وړاندې کیدل:

لومړی داچي اوړه یې نانوابانو او کوپون لرونکو ته ورکول کېدل. دویم پخي ډوډۍ او کلچې یې هم د سېلو په مربوطو پلورنځیو کې په ښارپاتو او عسکري قطعو وېشل کېدې. په دې فابریکه کې په بوره شفت یاد کار پړاو کې

۶۶۴ تنو کار کاوه او د ډوډۍ تولېداو د پخولو له پاره د مؤسسې د غوښتنې له مخې د شپې له خوا هم د کار پړاو وچې د ډوډۍ او کلچو په تولېد کې برخه درلوده. له بده مرغه په وروستیو جګړو کې دغې د ستګاه زیات زیان ولېداو بیا جوړوني او تر مېم ته یې ضرورت پېدا کړ.

## د آهو بوټانو د تولېد فابریکه:

دغه فابریکه په ۱۳۴۰ هـ. ش کال کې د کورنۍ اوبهرني پانګې اچوني له مخې را منځته شوه او په ۱۳۴۲ کال کې یې د شش در ک په سېمه کې په عملي توګه په کار پېل وکړ. هغه په یووولس جریبه ځمکه کې د ۱۴ ملیون افغانیو په پانګه پرانستل شوه وروسته بیا یوې سویسي کمپنۍ زر ډالره مرسته وکړه او د افغانیو پانګه یې د یرش ملیونو افغانیو ته لوړه کړای شوه، د دولت شل ملیونه افغانیو پوره هم پکې شـــامل وې مواد یې د غواپانو پسونو او وزو پوستکي وو. تولېدي برخه یې د څرمنــــو برابرولو په برخه کې یوازې د غویي له پوستکي څخه یې لس ډوله څرمنــې تولېــدولې. د بوټانو تولېداتو ته یې یوه ورځ کې له ۷۰۰ جوړو څخه زرو جـــوړو ته پر مختیـــا ورکړی شوه او په ۱۳۴۳ کال کې یــــې د کلنیو تـــولېداتـــو بیه دوولـــس نیم ملیونه افغانۍ وه. خو په ۱۳۴۸ کال کې اووه دیرش نیم (۵, ۳۷) ملیونه افغانیو ته لوړه شوه، په هغې کې ۱۲۲ ماشینونو او ۶۵۱ تنو کارکاوه تولېدات یې په کابل او بیلا بیلو ولایتونو کې پلورل کېدل. دغه فابریکه په وروستیو جګړو کې بېخي وسوځېده او له منځه لاړه.

## د بګرامو د نساجي فابريکه:

د بګرامو د نساجي فابريکي د جوړولو چارې په ۱۳٤٦ هـ، ش کال کې پيل او په ۱۳٤۸ کال کې پای ته ورسېدې، دا فابريکه په شل جريبه ځمکه کې جوړه شوه. ټوله پانګه يې ۳۵ , ۲ مليونه سټر لنګ پونډه وه. چې په ۱۹٦٦ کال کې پنځه سوه مليونو افغانيو لوړه شوه. د دغې فابريکې بنسټ د چين د دولت په مرسته کېښودل شو، توليدي ظرفيت يې په کال کې ۱۲ مليونه متره سپين او چارخانه او ۸۰۰ ټنه تار د هېواد د صنعت ګرانو او لګوونکو له پاره ؤ، د کار ګرانو شمېر يې ۱۷۰۰ تنو او د مامورينو شمېر يې (۱۵۰) تنو ته رسېده په لومړي وخت کې يې چينايي ماهران ۱۸٦ تنه و او وروسته بيا شمېر ۱۵ تنو ته را ټيټ شو، د کورنيو کار ګرانو له جملې څخه يې ٤۰۰ تنه ښځينه وې.

ورځني توليدات يې پنځوس زره متره ټوکران ؤ چې ٤۰ رنګه ؤ او په هغې کې ۸۰ ډوله بېلابېل ډيزاينونه په کارېدل. د تار تاوولو ۵۰ ماشينونه او د بېلابېلو ټوکرانو له پاره د او بدلو ٦۱٦ ماشينونه ؤ چې ۵۰٤ يې د ساده ټوکرانو له پاره او ۱۱۲ يې د رنګه ټوکرانو له پاره په کارېدل. د پنبې خام مواد يې له کوهستان او ۳۰۰ کيلو متري واټن څخه برابرېدل، پوره برېښنا او اوبه يې درلودې.

توليدات يې کابل او د هېواد نورو ولايتونو ته وړاندې کېدل او زيات پېرودونکي يې درلودل، خو سامان آلات يې لوټ شوي دي.

## د عقاب د بوټانو فابريکه:

دغه فابريکه د کابل د لوېديځ په ۱۲ کيلومترۍ کې د پغمان په دوه

لاري کې جوړه شوي او په ۱۳٤٦ کال کې په خپل توليدي کار پيل وکړ. لومړني پانگه يې يو ملېون افغاني وه، وروسته بيا ځلورو ملېونو افغانيو ته لوړه شوه. په ۱۳٤۸ کال کې په دغې فابريکه کې د بوټانو د گنډلو ٦۳ ماشينونه ؤ او موادې زياتره له گاونډيو هېوادو څخه کله هم له انگلستان او جرمني څخه راوړل کېدل. د دغې فابريکې توليدي ظرفيت په ورځ کې ٤۰۰ جوړو بوټانو ته رسېده. د لومړنيو موادو د گمرکي محصول ورکولو او له گاونډيو هيوادو څخه د تيتې بيې د بوټانو واردولو دهغې د توليد سطحه تر يوې اندازې را ټيټه کړه.

په ۱۳٤۸ کال کې د کار گرانو شمېر ۱۳۰ تنه ؤ او په ۱۳٤۹ کال کې ۷۵ تنو ته راټيټ شو. څرنگه چې د بهرنيو بوټانو په وړاندې يې سيالي نه شواى کولاى، نو توليدات يې د را ټيټيدلو په حال کې وو.

دغې فابريکه په ۱۳٤۷ کال کې ۲۳ زره جوړي بوټان په ۷,۸۲۰,۰۰۰ افغانيو او په ۱۳٤۹ کال کې يې ۱۸,۵۰۰ جوړې بوټان په ٦۲۹۰,۰۰۰ افغانيو په ټوله ببه توليد کړل. چې له بده مرغه له ټيټيدو سره مخامخ وه او اوس غير فعاله ده.

## د کابل ضاعتي پارک:

د کابل صناعتي پارک له ۱۳٤۷ هـ ش کال څخه وروسته د کابل په ختيځ څرخي پله کې، د حربي پوهنتون د لوېديځ د يوال تر څنګ، په پراخه سيمه کې سروې او بنسټ يې کېښودل شو. په هغه کې د نساجي، وړې اوبدلو، جاکټ او بدلو جورابو او بدلو، د سمنټو توليدول، گول سېخانو، بوټ گنډلو، د موزاييک ډبرو، کيمياوي موادو، درملو، پلاسکو، پلاستيکونو، د مېوي د

سمون، مکروني، ساختماني دستګاوې، مشروبات، نوشابې، بایسکل او داسې نور چې په بیلا بیلو تولیداتو او بیلا بیلو نومو سره څه د پاسه سل ډول ډول دستګا وو یې خپل فعالیت پیل کړ. دلته یې د بیلګې په ډول په لنډه توګه د یوې فابریکې په باب لنډې خبرې کوو (دغه ټولې فابریکې وېجاړې او له خاورو سره خاورې شوي دي.)

## د وطن پلاستیک:

دې فابریکې د (۳۰) ملیونو افغانیو په پانګه په ۱۲ جریبه ساحه کې په کار پیل وکړ او بیا یې پانګه پنځوس ملیونو افغانیو ته لوړه کړای شوه، په هغې کې ۲۰۰ تنه کارګران چې له هغې جملې څخه دوه تنه ایرانیان وو او ۳۵ ډول ډول ماشینونه په کې په کار واچول شول. د پلاستیکي بوټانو تولیدېې په ورځ کې له لسونه تر ۱۲ زرو جوړو پورې و او د جنسیت له لحاظه یې د تولید بنه نظر ګاونډیو هیوادو ته غوره او بهتره وه.

په صنا عتي پارک کې د هوخست د درملو د تولید فابریکه له روغتیایي پلوه او هم درملتونونو ته د درملو په وړاندې کولو کې زیاتره د پاملرنې وړ ګرځېدلې وه. په هر حال دغه صنا عتي پارک له ۱۳۷۲ نه تر ۱۳۷۵ کال پورې د خاورو په ډېرۍ بدل شو، پانګه، شتمنی او سامان آلات یې چور او تالان شول او کابل یو ځل بیا د پردیو د مالونو راتلو ته سترګې په لار شو.

## چاپ او خپروني:

د دې تولیدي دستګاو تر څنګ شخصي او دولتي مطبعې، راډیو او

تلویزیون او د هغه اړوند ورکشاپونه د کابل په گوټ گوټ کې رامنځ ته شول. راډیو په ۱۳۰۲ کال په فعالیت پیل وکړ او تلویزیون په ۱۳۵۷ هـ ش کال د شمشاد دستگاه له لارې په کار پیل وکړ.

نوټ: د لومړي ځل لپاره راډیو په ۱۳۰۲ هـ ش کال کابل ته راوړل شوه، په ۱۳۰٤ ش کال پر یو شمیر خاصو کسانو دیرش گوشکي راډیوگانې وویشل شوې، په ۱۳۰۷ ش کال د ۲۰۰ کیلو واټو په ظرفیت په کابل کې یوه دستگاه په کار واچوله شوه.

د ۱۳۱۰-۱۳۱۲ هـ ش کلونو ترمنځ د کورنیو چارو وزارت په چوکاټ کې د کابل راډیو فعالیت کاوه. له ۱۳۱٦ هـ ش کال وروسته کابل راډیو خپل پراختیایي پړاوونه وهل. په ۱۳۳۰ کال کې د کابل راډیو نوم په راډیو افغانستان واوښت او په منځنیو اولنډو څپویې خپرونې کولې چې تراوسه ادامه لري. په ۱۲۸۳ هـ ش کال د امیر شیر علیخان دواکمنۍ پرمهال د شمس النهار په نامه لومړنۍ جریده له چاپه راووتله او لومړنۍ سنگي مطبعه هم وکارول شوه. د امیر حبیب الله خان په وخت کې (۱۹۰٦م) د سراج الاخبار اوونیزه د سراج الاخبار په مطبعه کې چاپ شوه، په همدې مهال حروفي مطبعه هم کابل ته راوړل شوه. د عنایت په نامه یوه بله مطبعه هم د حروفي چاپ د وسایلو او د زنگو گرافي دستگاه په لرلو، جوړه شوه. د امان الله خان په وخت کې د امان افغان جریدې د سراج الاخبار ځای ونیو. هغه وخت په کابل ښار کې ۲۹ ورځپاڼې، اوونیزې او مجلې چاپیدلې. انیس د یوې آزادې ورځپاڼې په توگه چاپ او خپور شو. اصلاح د محمد نادر شاه په وخت کې په خپرونو پیل وکړ او د خپرونو ډېره ځلانده مرحله د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د مطبوعاتو روښانه

دوره ده چې له ۱۳۵۰ کال ۱٤ ورځپاڼې، ۲۹ اوونیزې (جریدې) او ۲۷ مجلې چاپ او خپرېدلې چې له دې جملې څخه ٤ ورځپاڼې، ۸ جریدې او ۲٤ مجلې په رسمي ډول د کابل مربوطې وې هغه هم په لاندې توګه:

## الف: د کابل ورځپاڼې

۱- د اصلاح ورځپانه، د تأسیس کال ۱۳۰۸ش

۲- د انیس ورځپانه، د تأسیس کال ۱۳۰٦ش

۳- د هیواد ورځپانه، د تأسیس کال ۱۳۲۸ش

٤- د کابل ټایمز ورځپانه په انګلیسي، د تأسیس کال ۱۳٤۰ش

دغه ټولې ورځپاڼې او جریدې په ملي مطبعه، دولتي مطبعه، عسکري مطبعه او د پوهنې مطبعه کې چاپېدلې او س په کابل ښار کې په کمپیوټر مجهزې زیاتې وړې مطبعې شته چې د مجلو، جریدو او ورځپاڼو اړتیاوې پوره کولی شي.

## ب: هغه اوونیزې (جریدې) چې په اوونیزه توګه په مرکز کې خپرېدې:

| ګڼه د اوونیزې نوم | مربوط ارګان | د تأسیس کال |
|---|---|---|
| ۱- د پامیر جریده | ښاروالی | ۱۳۳۰هـ.ش |
| ۲- د زیرې جریده | پښتو ټولنه | ۱۳۱٦هـ.ش |
| ۳- د روغتیا زیری جریده | د روغتیا وزارت | ۱۳۲۸هـ.ش |
| ٤- د اقتصاد جریده | د سوداګرۍ اتاقونه | ۱۳۱۰هـ.ش |
| ۵- رسمي جریده | د عدلیې وزارت | ۱۳٤۲هـ.ش |
| ٦- د ولسي جرګې جریده | ولسي جرګه | ۱۳٤٤هـ.ش |
| ۷- د ګرځندوی جریده | په خپله ګرځندوی | ۱۳٤۷هـ.ش |
| ۸- د خبرونو جریده | د پوهنې وزارت | ۱۳۳۰هـ.ش |

**ج- هغه مجلې چې په مرکز کې خپریدې:**

۱- ژوندون مجله د ژوندون د خپرونو مؤسسه ۱۳۲۷ هـ.ش

۲- پښتون ږغ راډیو افغانستان ۱۳۱۹ هـ.ش

۳- پیام حق مجله د اطلاعاتو او کلتور وزارت ۱۳۳۱ هـ.ش

٤- افغانستان مجله په انگلیسي ژبه، د تاریخ ټولنه ۱۳۲۷ هـ.ش (۱)

۵- د کابل کالنۍ د اطلاعاتو او کلتور وزارت ۱۳۱۱ هـ.ش

٦- میرمن مجله د میرمنو ټولنې ریاست ۱۳۳۲ هـ.ش

۷- عرفان مجله د پوهنې وزارت ۱۳۳۲ هـ.ش

۸- ساینس مجله د علومو پوهنځي ۱۳٤۱ هـ.ش

۹- قضا مجله ستره محکمه ۱۳٤٦ هـ.ش

۱۰- د کوچنیانو ږغ مجله د پوهنې وزارت ۱۳۳۸ هـ.ش

۱۱- د ادب مجله د ادبیاتو پوهنځی ۱۳۳۲ هـ.ش

۱۲- د کابل پوهنتون خپرونه (مجله) کابل پوهنتون ۱۳۳۸ هـ.ش

۱۳- دجغرافیه مجله د ادبیاتو پوهنځي ۱۳٤۱ هـ.ش

۱٤- وږمې مجله د ادبیاتو پوهنځي ۱۳۳٦ هـ.ش

۱۵- وېسامجله تجارتي بانک ۱۳۲۸ هـ.ش

۱٦- اردو مجله د ملي دفاع وزارت ۱۲۹۲ هـ.ش

۱۷- طبي بولتن د طب پوهنځي ۱۳۳۵ هـ.ش

۱۸- د حربي پوهنتون مجله حربي پوهنتون ۱۳٤۳ هـ.ش

۱۹- د هوا مجله د ملکي هوايي چلند رياست ۱۳۳٦ هـ.ش

---

(۱) په ۱۳۵۷ کال کې د افغانستان د علومو اکاډمي له تأسیس سره سم د افغانستان د تاریخ ټولنه د علومو له اکاډمي سره مدغم او دواړه مجلې یې افغانستان او آریانا اوس په دې اکاډمي پورې اړه لري. (ژباړن)

۲۰- د بدني روزنې مجله کابل پوهنتون ۱۳۳۸هـ.ش

۲۱- د آریانا مجله تاریخ ټولنه ۱۳۲۱هـ.ش

۲۲- د لمر مجله د اطلاعاتو او کلتور وزارت ۱۳۴۹هـ.ش

۲۳- د کوچنیانو انیس مجله د انیس خپرندویه موسسه ۱۳۴۸هـ.ش

په مرکز کې د ملي جرید و فهرست: دا جریدې پخوا خپریدلې خو اوس نه چاپیږي:

| ګڼه | د جریدې نوم | د امتیاز خاوند |
|---|---|---|
| ۱ | کاروان ورځپانه | صباح الدین کشککی |
| ۲ | مساوات | عبدالشکور رشاد |
| ۳ | ترجمان | علی اصغر بشیر هروي |
| ٤ | سبا | غلام نبي خاطر |
| ۵ | خیبر | محب الرحمان هوسا |
| ٦ | ګهیځ | منهاج الدین ګهیځ |
| ۷ | پکتیکا | شاه زمان وریځ |
| ۸ | اتحاد ملی | عبدالحکیم مژده |
| ۹ | پیام وجدان | عبدالرؤف ترکمنی |
| ۱۰ | روزګار | محمد یوسف فرید |
| ۱۱ | افکارنو | انجنیر نور الله نورزاده |
| ۱۲ | پیکار | غلام محمد الماسک |
| ۱۳ | ملت | فدا محمد فدائی |
| ۱٤ | افغان | محمد حسن ولس مل |
| ۱۵ | ندای حق | مولوی عبدالستار صدیقی |
| ۱٦ | شوخک | عبدالعزیز مختار |
| ۱۷ | صداي عوام | عبدالرحیم فوزان |
| ۱۸ | سپیده دم | سید محمد بامداد |
| ۱۹ | جبههء ملي | عبدالرب اخلاقی |
| ۲۰ | پروانه | امان الله پروانه |
| ۲۱ | شعلهء جاوید | عبدالرحیم محمودی |

## د کابل مشاهیر: (۱)

د کابل په ښکلي اوښه آب و هوا کې پوهان، فضلا، عارفان، هنرمندان او بې شمېره اتلان (قهرمانان) روزل شوي او د تاریخ په پاڼو کې يې خپل نومونه د تل لپاره پرېښي دي. دغو ټولو له پېژندنې د زرمنه کاغذ مثنوي جوړېږي. موږ د دې کتاب د حوصلې په پام کې نېولو له مخې په لنډه توګه د ځېنو یادونه کوو:

### ۱- شیخ سعد الدین انصاري (۱۱۰۸-۱۱۹۸ هـ ش):

زموږ د هېواد نومیالی عارف، شاعر او صوفي چې په «حاجي صاحب پایمنار او «حاجي صاحب ده یحیي» مشهور و، آثار يې ۴۳ ټوکه ښوول شوي او د وخت د نومیالي، علمي او روحاني شخصیت مولانا عبدالقهار زوی و.

### ۲- استاد بېتاب (۱۲۷۰- ۱۳۴۷ هـ ش):

عالم، فاضل او د هېواد منلي ادیب استاد عبدالحق بېتاب د ملا عبد الاحد عطار زوی د کابل په قصاب کوڅه کې زیږېدلي او کلونه يې د ښوونکي، د کابل پوهنتون د استاد او د سناتور په توګه هېواد ته خدمت کړي او د کابل پوهنتون له خوا د پوهاند د افتخاري علمي رتبې په ترلاسه کولو بریالي شوی دی. له استاد نه په نظم او نثر کې ارزښتناک آثار را پاتې دي.

### ۳- عبدالهادي داوي پرېشان (۱۲۷۷- ۱۳۶۶ هـ ش)

د افغانستان وتلی سیاستپوه، فاضل، لیکوال او شاعر د عبد الاحد زوی چې د علیمر دان بن کې زیږېدلي او د برتانیا له دولت سره د

---

(۱) دغه برخه د اریک د ایډیټوري بورډ له خوا برابر شویدي.

افغانستان د استقلال د مذاکراتو د هیأت غړی و. له هغه نه په نظم او نثر ژبه ښه آثار پاتې دي.

## ٤ - عبدالحسین توفیق ( زیږیدنه ۱۲۹۷ هـ ش ) :

د دري ژبې له وتلو شاعرانو او لیکوالو څخه دی، چې له شوروډک شعرونه لري.

## ٥ - میرزا محمد جاذبي (مړینه ۱۲۶۰ هـ ش ) :

په ملا بزرگ مشهور د ملا محمد اسماعیل زوی مشهور عارف چې د طریقت څلور طریقې یې رهبري کولې، نو موړی د چاردهي په قلعه واحد کې اوسېده. د چهل ستون د واصل آباد د غره په لمن کې د هغه جاذب مزار د زړونو د خاوندانو زیارتګاه ده.

## ٦ - محمد ابراهیم خلیل (۱۲۷۷ - ۱۳۶۷ هـ ش ) :

د هېواد د غه مشهور خطاط، لیکوال او شاعر د میرزا محمد افضل زوی و. څه موده یې د امان الله خان د دربار د منشي په توګه دنده (وظیفه) ترسره کوله او بیا وخت یې د تکره ژورنالیست په حیث خدمت کاوه. له هغه نه ژبه ښه آثار راپاتې دي.

## ٧ - خلیل الله خلیلي (۱۲۷۸ - ۱۳۶۶ هـ ش ) :

د غه نوموتلي شاعر او وتلي لیکوال د میرزا محمد حسین زوی دی چې د کابل د باغ جهان آرا په سیمه کې یې سترګې پرانیستې دي. ده د پوهنتون د استاد، د شورا د وکیل او سفیر په توګه دندې ترسره کړې. له ژباتو خدمتونو وروسته د هجرت په تاتوبي کې وفات شو.

## ۸-غلام سرور دهقان (۱۲۹۸ - ۱۳۶۲ هـ ش):

شاعر او عارف، خطاط د میرزا محمد اعظم زوی دی چې د کابل په ده بوري کې اوسېده. پراداري او دولتي چارو برسیره یې عرفان او تصوف ته هم پام اړولی و. د شعرونو دیوان یې د (مزرعهء دهقان) په نامه چاپ شوی دی.

## ۹- شاق جمال (مړینه: ۱۳۵۰ هـ.ش):

اروابناد میرغلام حضرت شایق په شایق جمال مشهور د امیر حبیب الله خان د زمانې له شاعرانو څخه دی. هغه خوږ ژبی، د سلیقې خاوند وپناوال، ظریف او حاضر ځواب و. پلار یې حافظ میر جمال الدین نومېده.

## ۱۰- محمد ابراهیم صفا (۱۲۸۹ هـ ش):

محمد ابراهیم صفا د محمد صفر زوی، د هیواد مشهور وپناوال دی چې حساسې دولتي دندې یې تر سره کړي دي. له آثارو څخه یې نوای کهساران او مختصر منطق چاپ شوي دي.

## ۱۱- ضیاء قاریزاده (زیږېدنه ۱۳۰۰ هـ ش):

دغه د لوړ مقام خاوند شاعر، لیکوال او هنرمند د تازه شعرونو په وېلو برسېره د موسیقي په هنر هم برلاسي (مسلط) و، د هغه ډېرو اشعارو دخپرونو پانې ښکلې کړي او مشهورو سندر غاړو هم وېلي دي.

## ۱۲- میر محمد علي آزاد (۱۲۵۹ - ۱۳۲۳ هـ ش):

آزاد کابلي د کابل د بالاحصار په لمنه کې نړۍ ته سترګې پرانیستي او د حبیب الله خان د دورې د لومړۍ ډلې او نوموړو شاعرانو څخه دي چې له آثارو څخه یې: د سراج الاخلاق، د سعدي د ګلستان نظم، نخلستان، د

غزلیاتو دیوان، د شیخ محي الدین بن عربي د وصایا و ترجمه او د آزاد ذخیره نومونه یا د ولي شو.

### ۱۳- صوفي عشقري (۱۲۷۱-۱۳۵۸ هـ ش):

صوفي غلام نبي عشقري د عبدالرحیم زوی دی چې د پغمان په چهلتن کې زیږیدلی او اولسي خوږ ژبی شاعرو. هغه د خپل عمر کلونه په بوائجتوب، د نصوارو په پلورلو، صحافت او شعرویلو تیر کړل دی.

### ۱٤- میر غلام محمد غبار (۱۲۷٦-۱۳۵٦ ش)

مؤرخ، لیکوال، سیاست پوه، د خوځښت او حرکت غوښتونکی چې مشهور اثر یې (افغانستان در مسیر تاریخ) د هغه پیژندنه تلپاتې کړه. د پلار نوم یې سید محبوب و.

### ۱۵- قاری عبدالله (۱۲۵۲-۱۳۲۲ هـ.ش)

د هیواد دغه نومیالی عالم، شاعر او لیکوال د حافظ قطب الدین زوی و. استاد د حبیبې لیسې له لومړینو ښوونکو څخه وو. او د ملک الشعراء ویاړمن لقب یې ترلاسه کړی و. د اشعارو پر دیوان سربیره له استاد څخه نور بې شمیر آثار هم پاتې دي.

### ۱٦- عبدالعلی مستغنی (۱۲۵۷-۱۳۵۷ هـ.ش):

د ملا رمضان زوی او د امیر حبیب الله خان د وخت له زبردستو ویناوالو څخه دی چې په پښتو او دري ژبو یې شعرونه ویل او ډیر آثار ترې پاتې دي.

### ۱۷- آمنه فدوی (۱۲٤۱-۱۳۰٤ هـ.ش):

د هیواد نومیالۍ ادیبه شاعره، مفسره، محدثه او لیکواله، د سردار نور

محمد خان لور وه. له هغې نه ډېر منثور او منظوم آثار راپاتې دي. آمنی فدوي حج ته د تګ په لاره کې د یوه موټر د ټکر له امله ځان حق ته سپارلی دی. چې په بیت المقدس کې د حضرت بلال (رض) د زیارت ترڅنګ خاورو ته سپارل شوې ده.

## ۱۸- احمد علي کهزاد (۱۲۸۷-۱۳۶۲هـ.ش):

د هیواد پېژندل شوی تاریخ لیکونکی احمد علي کهزاد د میرزا محمد علي زوی په مهمود ولتې اداروکې د دندو د اجرا ترڅنګ کې تر ډېر شو زیات تاریخي آثار هم لیکلي دي او همدارنګه یې له شعر ویلو سره هم مینه درلوده.

## ۱۹- عبدالغفور برېښنا (۱۲۸۲-۱۳۵۲هـ.ش):

د هیواد هغه ممتاز ممثل، انځور ګر او هنر مند دی چې هنري آثار یې له نړیوالو شاهکارونو څخه ګڼل کیږي. استاد برېښنا لومړنی افغانی هنرمند دی چې د انځور ګرۍ او رسامۍ په څانګه کې یې لوړې زده کړې درلودې.

## اووم څپرکی

# د کابل نزولي حرکت او د ړنګېدو پړاو

له ۱۳۵۷ هـ.ش کال څخه را په دېخوا د کابل ښار د شاته تګ پر لور روان وو او ورو ورو د توغندیو تخریبونو هغه تهدید اوه. خو له ۱۳۷۲ نه تر ۱۳۷۵ کاله کابل د وحشت، تخریب چور او تالان په ډېر بد حالت کې واقع شو چې په پایله کې لاندېنی سیمې ورانې او له منځه لاړې:

لویدیځ او جنوب لویدیځ:

د افشار د غره جنوب ته له قرغی نه د مامورینو تر کارتې او له خوشحال خان مینې او قلعه ٔ واحد څخه د تاج بیګ تر غونډۍ او د دارالامان ترمانۍ او د چهلستون له مانۍ څخه تر واصل آباد، ګذرګاه، بریکوټ، د کابل ژوبڼ د شېرشاه مینې د لوی واټ په اوږدو کې، دریمه کارته، جمال مینه او کابل پوهنتون، د سیلو، ترانسپورتي مرکزونو او برقي بسونو په شمول ځایونه ړنګ شول.

په دې لویدیځه او جنوب لویدیځه ساحه کې ټول صنعتي کلتوري، عرفاني، روغتیایي تأسیسات، فابریکې، شخصي کورونه، پارکونه، واټونه، د تیلفون ډاګې، سیلو، جوماتونه، لابراتوارونه، کتابتونونه، پولي تخنیک

کابل پوهنتون، روغتونونه، د جنګلک فابریکه، سینما ګانې، د نجاري او حجاري فابریکې، عالي لیسې، ورکتونونه، ژوبڼ او دده همزنګ د محبس سیمه په خاورو او ایرو بدله شوه.

## د ګذرګاه ختیځ:

د ګذرګاه له پله څخه د پامیر سینما پرلورې، د ماشینخانې سیمه، د کابل سیند دواړه خواوې تر شاه دوشمشیره (علیه الرحمه). د میوند واټ په استقامت میوند واټ، زوړ ښار، چنداول، شوربازار، باغ علي مردان، د پل خشتي د جومات مخامخ سیمه، د مراد خانی او ملي بس تصدي منځنۍ سیمه، شش درک د مکروریان ترپله پورې د لومړی مکروریان په شمول، د مرنجان د غونډۍ دواړه خواوې د شاه شهید په شمول بالاحصار، سید نور محمد شاه مینه تر یک لنګه کوتله او د جشن سیمه له یوې مخې ړنګه او بې درنګه په خاورو ایرو بدل شول.

## د مکروریانو د لوی پله ختیځ:

له دې ساحې وروسته د کابل - ځرخي پله د سرک په اوږدو کې ټول تأسیسات، شخصي او دولتي ودانۍ د پلچرخي ترتنګي د افسوتر، د کابل برېښنا اداري، ګمرک او د صناعتي پارک ټول تأسیسات، حربي پوهنتون، زغرواله قوا دا ټول له چته ترېنسته له خاورو سره خاورې شول.

په همدې ترتیب د یغمان د دوه لارې له کمپنۍ څخه تر پلځرخي او تنګ غارو پورې ټولې صناعتي، تخنیکي او تولیدي دستګاه ګانې له منځه لاړې.

دغو ارادي ورانيو کابل يو ځل بيا له صناعتي، کلتوري او بشري ځواک څخه بې برخې او ضعيف کړ.

په همدې توګه د ( ۵۰۰,۰۰۰ ) زرو په حدود کې د کابل او سيدونکي له خپله ځايه او خپل استوګنځي څخه يا مسافر او پردي وطن ته په مهاجرت مجبور شول يا څه نا څه شهيدان شول. مالونه يې چور، خپله بې کوره اواره، متواري او در په در شول. د ژړا او چيغو غږيې د چا غوږ ته ونه رسيد.

## د کابل د بيا رغونې لپاره څه بايد وکړو؟

د دې پوښتنې په وړاندې د کابل ښار د بيا رغونې او ودانولو په باب بايد څرګنده کړو چې له وسله والو افرادو نه يوې لنډ مهالې اداري ته دواک لېږد اول او د هغې په دوام انتقالي حکومت د افغانستان د بيا رغونې په تيره بيا د کابل ښار لپاره له ځان سره نوې زيرې ډالۍ کوي.

بشپړ باور لرو چې د مؤقت حکومت د پروسې په عملي کېدو سره چې د کابل په ښار او د هيواد په نورو سيمو کې سوله، امنيت او د افغانانو مصؤنيت تأمين شوي او دهغه په رڼا کې د بيا رغونې پلانونه او پروګرامونه عملي کېږي.

لکه څنګه چې د مخه ورته اشاره وشوه کابل د يغمان له دوه لارې نه ته څرخي پله پورې د کابل سيند د غاړو په اوږدو کې ړنګ او خراب شوی دي. د ۱۳۶۸ هـ.ش کال د احصائيې له مخې د ړنګو شوو ناحيو د نفوسو او کورنيو شمير په لاندې ډول وو:

| ړنګې شوې ناحیې | نفوس | دکورنیو شمیر | د ړنګیدو سلمې |
|---|---|---|---|
| پنځمه ناحیه د قلعه واحد په شمول | ۱٤۷,۰۰۰ | ۲۱۳۰٤ | په سلوکې ۵۰ |
| دریمه ناحیه | ۹۸,۲۰۰ | ۱٤۸۷۹ | په سلوکې ۱۰۰ |
| دویمه ناحیه | ٥٤,٦۰۰ | ۸۸۰٦ | په سلوکې ۵۰ |
| لومړۍ ناحیه | ۹۷,۳۰۰ | ۱۸۸۵۰ | په سلوکې ۱۰۰ |
| اتمه ناحیه | ۱۱۷,۹۰۰ | ۱۷۳۳۸ | په سلوکې ۵۰ |
| اوومه ناحیه | ۱٦۹,۰۰۰ | ۲٤۸۵۲ | په سلوکې ۵۰ |

په دې حساب د (۵۰۰,۰۰۰) زرو په شاوخوا کې کسانو په ۱۳۷۲-۱۳۷۵ کلونو کې کابل پریښی دی. د کابل په لویدیځ، د کابل په مرکز، په رحمان مینه، او شاه شهید علیه الرحمه کې زیاتره کورونه وران او چور شوي دي او په دې ترڅ کې ټولې صناعتي او تجارتي دستګاه ګانې، ښوونځي، د اوبو رسولو شبکې، د برېښنا شبکې، تیلفون، تعلیمي مؤسسې، پوهنتون او نورې بیلګې یې په بشپړ توګه له منځه تللې دي، بناً د بیارغونې محترم وزارت دې پاملرنه وکړي څو په دې ډګر کې د لاندینیو وزارتونو د کار پوهانو په مرسته د تخریب ساحه، د تخریب بیه او د هغه احتمالي بر آورد تعیین او تثبیت کړي:

- د پوهنې د وزارت کارپوهان دې د ښوونځیو او لیسو ورانۍ او تخریب وڅیړي.

- د لوړو زده کړو وزارت کارپوهان دې د پوهنتون او د لوړو زده کړو د مؤسسو تخریبات او ورانۍ وڅیړي.

د اوبو لګولو او د برېښنا د انرژۍ وزارتونو کار پوهان دې د اوبو رسولو او برېښنا د شبکو ورانۍ وڅیړي.

- د مخابراتو وزارت کارپوهان دې د تیلفون د شبکو تخریبات وڅېړي.

- د صنایعو د وزارت کارپوهان دې صناعتي مرکزونه او تخنیکي دستگاه گانې وڅېړي.

د فوایدعامې او ساختماني وزارت دې لارې او سړکونه وڅېړي.

له هغه وروسته چې د کارپوهانو مقدماتي چارې ترسره شوې او يو تخميني براورد وړاندې شو، د بيارغونې محترم وزارت دې له ذيعلاقه هيوادو څخه د مالي وجوهاتو د برابرولو په لټه کې شي.

- د نړيوال وجهي صندوق، اسلامي هيوادونو، د امريکا متحده ايالاتو، انگلستان اروپايي ټولنې، چاپان او شمالي، ختيځو لويديځو گاونډيو په مرسته د کارپوهانو بشپړه توگه د پانگې اچونې او زيرمه کولو او سامان آلاتو د جلبولو لارې ولټوي.

- د بيارغاونې په برخه کې لومړيتوبونه، د لنډې مودې بيارغونه، د اوږدې مودې بيارغونه، فرهنگي او کلتوري بيارغونه، داټول په پام کې ونيول شي.

- د کورونو او استوگنځيو، روغتونونو، ښوونځيو او روزنيزو مؤسسو ټولې ودانۍ دې په ټاکلو تصنيفونو او کټگوريو کې مطالعه شي.

- هڅه دې وشي چې د بيارغاونې د هرې برخې په باب له تحويلوونکې مرجع سره تواميت ورکړل شي. هغه ژر بشپړيدونکي ودانۍ چې هغوته د لومړيتوب حق ورکول کيږي، ډير ژر له تمويلوونکو سره په اړيکو کې د هغو درغاونې کار پيل شي. د اوږدې مودې او زيات لگښتي پروژې دې له لويو تمويلوونکو هيوادونو سره په دويمه مرحله کې په پام کې ونيسي، خو د هغو کار بايد له همدا اوسه پيل او په دې اړه جدي تدابير ونيول شي، څو د کار پايله د

کابل د بیا رغونې په گټه پای ته ورسیږي: په هره برخه کې کاري او فني ډلې (ټیمونه) ضروري دي څو د چارو د پرمخبیولو او سرعت په باب د بیا رغونې وزارت ته ډاډ ورکړي او غوره لارې چارې ولټول شي.

د کابل ښار د بیارغاونې په اړه باید هر وزارت، هره تصدي او لوی ریاستونه د بیا رغونې د ساحو د تثبیت واکمن کیمسیونونه ولري. څو په مستقیمه توگه په بیارغونې پورې اړوند مسایل تعیین، تثبیت او مربوطې اداري ته یې وړاندې کړي او ټول د بیا رغاونې په وزارت کې توحید شي.

لازمه بلل کیږي چې د بیا رغاونې لپاره یوه ځانگړې خپرونه رامنځ ته شي څو د بیا رغاونې ساحې، د بیارغاونې بنیه، څرنگوالی او له دې ستونزې نه دوتلو لارې پکې منعکس شي.

## د کابل ښار د ماستر پلان په اړه:

د کابل ښار د ماستر پلان په اړه باید وویل شي چې د کابل ښار بیارغاونه دې په اوسني بنستیز جوړښت تر سره شي. ځکه چې په ماستر پلان کې په بشپړه توگه څوپوړیزې ودانۍ په نظر کې نیول شوي دي. شنې ساحې ته پراختیا ورکړه شوې او په پام کې وو چې په زیاتره ځایو کې یو پوړیزې ودانۍ ورانې شي، خو د دغه پلان عملي کول دوه لویې نیمگړتیاوې لري:

۱ - د کابل خلک مالي توان نه لري څو دغه د روند بار او زیات لگښت و زغمي. ځکه چې د دوه نیمو لسیزو جنگ جگړو اوبې ځایه کیدو د خلکو توان او حوصله له منځه وړې ده.

۲ - په لوړ پوړیزو او څو پوړیزو ودانیو کې ژوند کول د شوروېانو د ژوند د اکثریت مجوزه ده او په هغه ماستر پلان کې د شوروي د کار پوهانو او

مهندسینو ذهنیت ته انعکاس ورکړل شوی و چې د کابل اوسیدونکي غوره ګڼي څو خپل ځانګړی (انفرادی) کورونه په خپلو د ودیزو احاطو سره وساتي او په وړواولو یو محدودو کې له خپلې فامیلي آزادی څخه برخمن واوسي.

## د کابل ښار د وضعې د ښه کولو بیا رغاونه:

دا به غوره وي چې د سخي د غاښی په برخه کې یولوی تونل رامنځته شی څو د کابل لویدیځې ناحیی د کابل له شمال او مرکز سره وصل کاندي او د ګذرګاه او باغ بالا ترمنځ ترافیکي فشار له منځه یوسي.

کابل ښاروالي او امنیتي اداري به دنده ولري تر څو د ښار د عمومي واټونو او پلیو لارو مؤقت او سیار دوکانونه له مخې لرې کړي، ځکه چې دغه وضعه په ښار کې غیر عادي ګڼه ګوڼه را منځته کوي، په سرکونو او پلیو لارو کې تګ راتګ اخلالوي او هم ښاري ترافیک له خنډونو سره مخامخ کوي. دویم دا چې د ښار نظافت او حفظ الصحه غیر مطمئنه او ملوثه کوي.

- ترافیکي څراغونه دې په کمپیوټري سیستم عیارشي، تاکلی ثابتې او سیاري کنترولي نقطې دې ولري.

## د مسکوني او رهایشي سیمو بیارغاونه:

- کابل ښار والي د کابل خلکو ته یوه عمومي بلنه په پام کې ولري څو دڅښتن په مستقیمه مراجعه او مشاهده اړوند کورونه او ناحیې، د خسارې او تخریب بڼه او اندازه تثبیت شي.

- د استفادې نه وړ خاورې دوړې او دورانو شوو کورونو پاتې شونې باید له کورونو او د ښار له ناحیو څخه لرې کړای شي.

- لږ ترلږه وران شوي کورونه پاک او د کار لپاره دې چمتو شي.

- د کابل زوړ ښار باید د بیا رغاونې پړاو ته ورننوزي، او له دې خراب حالت څخه په یوه معاصره ښاري هسته بدل شي. د کابل دزاړه ښار د بیارغاونې په وخت کې دې د ګذرونو او تاریخي ځایونو نومونه وساتل شي.

- د کابل بالاحصار او د شیر دروازې پرسر پراته دیوالونه دې د تاریخي ودانیو په توګه وساتل شي او د ګرځندویانو او سیلانیانو، لرغو نپوهانو د لیدلو او کتنې لپاره دې چمتو شي او دهغو د لویدلو او زیات تخریب مخنیوی دې وشي او دهغو عاید دې د اطلاعاتو او کلتور وزارت ته ورکړل شي.

- وړاندیز کیږي چې د شیر دروازې د غره له څوکې دې تر بالاحصار پورې د هوایي ترانسپورټ کیبلونه وغزول شي او هم دې د شیر دروازې د غره له څوکې د آسمايي غره ترڅوکې د هوايي ترانسپورتي کوچونو بریښنا یې کیبلونه په پام کې ونیول شي. څو د شیر دروازې د غره لپاسه د یوالونه او د کابل ښکلې او توریستیکي منظره: سیلانیان، ګرځندویان او نور مراجعین له هوانه په مستقیمه توګه و ګوري په بشپړ باور سره ویلای شو چې د کابل لپاره به له دې درکه دیادونې وړ عاید ترلاسه شي.

په پای کې د لنډ مهاله حکومت د موجودیت او د انتقالي حکومت د زیري، سیاسي ثبات او امنیت په پام کې نیولو سره دې روڼ اندو (روښانفکرو)، کارپوهانو، سوداګرو او تکنوکراتانو ته د نړۍ په سطحه یوه عمومي بلنه ورکړه شي، څو تول یو بل ته لاسونه سره ورکړي، د کابل او هیواد په بیارغاونه کې کار نده ونډه واخلي او په بیلا بیلو برخو کې یې له تجربو څخه استفاده وشي. په همدې هیله.




## د مأخذونو لړلیک

- آریانا دایرة المعارف، اطلاعات او کلتور، په شپږو ټوکونو کې، ۱۳٤٦هـ. ش.
- آهنگ، محمد کاظم. تاریخ مختصر وسایل رسانه های جمعی در افغانستان، توانا ، اریک، د اکبر د اطلاعاتي او نشراتي منابعو مرکز، پېښور، ۱۳۸۰هـ. ش.
- حبیبی، عبدالحی. بالاحصار کابل، د کابل پوهنتون مجله، ۱۳٤۸هـ. ش.
- ذ هین، عبدالرسول. شهر کابل، د جغرافیې مجله، کابل پوهنتون، ۱۳٤۸هـ. ش.
- سالنامه ٔ احصائیه مرکزی. نفوس نواحی شهری، کابل، ۱۳۵۸هـ. ش.
- سالنامه ٔ احصائیه مرکزی. نفوس نواحی شهری، کابل، ۱۳۷۵هـ. ش.
- عارض، غلام جیلاني. جغرافیای شهري، درسي متن، کابل پوهنتون، ۱۳٦۱هـ. ش.
- عارض، غلام جیلانی. شهر کابل، د جغرافیې مجله، کابل پوهنتون، ۱۳٤٤هـ. ش.
- عارض، غلام جیلانی. کابل مجله، انګلیسی متن، پښتو ټولنه، ۱۳۵٤هـ. ش.
- عارض، غلام جیلانی. کابل دیروز... د پېښور چاپ، ۱۳۷۷هـ. ش.
- غبار، میرغلام محمد. افغانستان در مسیر تاریخ، ۱۳٤٦هـ. ش.
- غرغښت. رهنمای کابل، کابل ښاروالي، ۱۳۵۰هـ. ش.
- فقیري، احمد فواد. نواحی شهری، شخصی یادداشت، ۱۳۸۰هـ. ش.
- فاولز. ل. ګری سکونت در شهر، ژورنال جغرافیه نمره، المان، ۱۹۷۲م.
- ورکشاپ طرح پالیسی ملی مسکن در افغانستان، کابل، د ۱۳٦۹هـ. ش کال سنبله.
- یمین، محمد حسین. افغانستان تاریخی، د پېښور چاپ، ۱۳۸۰هـ. ش.

# د اریک د گرځنده کتابتونونو د اداري خپاره شوي کتابونه

١- د افغانستان عمومي جغرافیه
٢- جغرافیای عمومی افغانستان
٣- د افغانستان تاریخي ودانۍ
٤- بناهای تاریخی افغانستان
٥- د افغانستان محلي خواړه
٦- ورزشهای محلی افغانستان
٧- سپینه کوتره
٨- کمان طلایی
٩- زده کړه چې ورزده کړو!
١٠- بیا موزیم تا بیاموزانیم!
١١- په افغانستان کې د چاپیریال ساتنه
١٢- حفاظت محیط زیست در افغانستان
١٣- په افغانستان کې د بوزغلیو او باغونو جوړونه او روزنه
١٤- تربیه و تهیه، برزق و باغها در افغانستان
١٥- د تمدن سوغات
١٦- ارمغان تمدن
١٧- زلزله در افغانستان
١٨- په افغانستان کې زلزلې
١٩- معیوبین و جامعه
٢٠- معیوبین او ټولنه
٢١- د افغانستان لنډکی تاریخ
٢٢- تاریخ فشرده، افغانستان
٢٣- د چرګانو ساتنه او پالنه
٢٤- مرغداری
٢٥- دنیای کودک
٢٦- د ماشوم نړۍ
٢٧- نگاهی بر اوضاع اقتصادی افغانستان
٢٨- د افغانستان اقتصادي حالت ته یو کتنه
٢٩- د شاتو مچیو روزنه
٣٠- زنبور داری
٣١- دافغانستان مشاهیر
٣٢- مشاهیر افغانستان
٣٣- دافغانستان کلک پوستي میوې
٣٤- میوه های سخت پوست افغانستان
٣٥- جغرافیاي ولایات افغانستان
٣٦- دافغانستان د ولایتونو جغرافیه
٣٧- تکنالوژی بایوگاز
٣٨- د بایوگاز تکنالوژي
٣٩- پرخوري یا خود خوري
٤٠- ډېر خوراکي
٤١- بازی های عامیانه اطفال
٤٢- دماشومانو ولسي لوبې
٤٣-٤٤- لنډي ها
٤٥- رهنمای تشخیص وتداوی امراض چشم، گوش، گلو وبینی
٤٦- دستر گو، غوږ، ستوني او پزې ناروغیو د تشخیص او درملنې لارښود.
٤٧- سرگرمی با تجربه های علمی
٤٨- په علمي تجربو سره وخت تیرول
٤٩- په افغانستان کې کانې زیرمې
٥٠- ذخایر معدنی افغانستان
٥١- اساسات ماهی پروری
٥٢- د کبانو د روزلو لارښوونې
٥٣- اوبه د ژوند سرچینه
٥٤- آب سرچشمه، حیات
٥٥- تدبیر منزل
٥٦- د کور سمبالښت
٥٧- سبزی ها
٥٨- سابه
٥٩- دافغانستان مشاهیر (دویم ټوک)
٦٠- مشاهیر افغانستان (جلد دوم)
٦١- توصیه های مفید برای انکشاف باغداری در افغانستان
٦٢- په افغانستان کې د باغونو د پرمختګ په هکله ګټورې لارښوونې
٦٣- شاهراه های افغانستان
٦٤- د افغانستان لویې لارې
٦٥- ورزش
٦٦- ورزش (پښتو)
٦٧- تاریخ مختصر وسایل اطلاعات جمعی در افغانستان
٦٨- په افغانستان کې د ډله ایزو اړیکو وسایلو لنډ تاریخ
٦٩- سیمای محیط زیست افغانستان
٧٠- د افغانستان د چاپیریال بڼه
٧١- اقتصاد
٧٢- اقتصاد (پښتو)
٧٣- تخنیک ابتدایی رادیو
٧٤- د رادیو لومړنی تخنیک
٧٥- د افغانستان مشاهیر (دریم ټوک)
٧٦- مشاهیر افغانستان (جلد سوم)
٧٧- دانستنی های مالداری و ترنری
٧٨- د وترنرۍ او مالدارۍ په هکله لارښوونې
٧٩- صنایع دستی افغانستان
٨٠- د افغانستان لاسي صنایع
٨١- هرات در دوره، تیموری ها
٨٢- هرات د تیموریانو په دوره کې
٨٣- نباتات صنعتی
٨٤- صنعتي بوټي
٨٥- جهان نما
٨٦- نړۍ ښود
٨٧- گلسته، اطفال
٨٨- د ماشومانو ګل غونچه
٨٩- آب های تحت الارضی و معدنی افغانستان
٩٠- د افغانستان ترځمکې لاندې او کانې اوبه
٩١- روغه ټولنه
٩٢- جامعه، صحمند
٩٣- شهر کابل در طی قرون



پوهاند غلام جیلاني عارض د محمد اسمعیل ځوي د کابل ولایت دچهار دهي ولسوالي په قلعهء قاضي کي زیږیدلی.

لوړې زده کړې:
د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي د تاریخ او جغرافیې له څانګې لسانس (۱۹۶۳ م کال)، دجغرافیې په څانګه کې د امریکا د متحده ایالاتو د کالورادو پوهنتون څخه ماستري (۱۹۶۶ م کال) د متحده ایالا تو داریزونا پوهنتون فولبرایت سکالر شپ او په تاریخ کې د دوکتورا کاندید (۱۹۹۳ م کال).

## رسمي دندي او اداري کارونه:

برسیره پردي چه د جغرافیې دڅانګې استاد و، په ۱۳۵۵ هـ. ش کال یې دپوهاند (پروفیسور) علمي رتبې ته ترفیع کړې او مافوق دولتي رتبه لري. د جغرافیې د موسسې امر، د جغرافیې مجلې او جغرافیې بولتن مسئول مدیر، دجغرافیې دڅانګې امر، دوه ځله دځمکپوهنې دپوهنځي رئیس، دوه ځله د پوهنتون علمي مرستیال او څو ځله د پوهنتون علمي شورا غړی.

په نړیوالو کنفرانسونو کې ګډون:
په هندوستان، امریکا، ایران، پاکستان او کابل کې یي په (۱۱) نړیوالو سیمینارونو کې ګډون کړي دي.

## چاپ شوي علمي آثار:

جهان امروز، اقلیم حیاتي افغانستان، اقلیم شناسي عمومي، جغرافیه فزیکي، جیومورفولوجي، کارتوګرافي وفوتو هاي هوایي، اساسات نقشه برداري، روش تحقیق جغرافیهء شهري، جغرافیه عمومي افغانستان، جغرافیه طبیعي افغانستان، جغرافیه فزیکي عمومي، خاکشناسي و جغرافیه عمومی، مطالعات مقایسوي درهء لوګر و غوربند، دافغانستان ولایتونو جغرافیهء دافغانستان جغرافیه (په انګلیسي ژبه)، دمعارف داوومو او لسمو ټولګیو جغرافیه، د افغانستان لویي لاري او هم دا اثر (کابل ښار د پیړیو په اوږدو کې)، همدا رنګه په دري پښتو او انګلیسي ژبو یي د هیواد دننه او بهر په مطبوعاتو کې زیاتو مقالې خپرې شویدي.




د اریک د ګرځنده کتابتونونو د خپرونو لړی
پرله پسې نومره ۹۴